# د فقهي کتابونو له پانوڅخه

(شپږمه برخه)

## د ښځو ځينې خاصې مسئلې

مفتي کفايت الله وردګ

# د کتاب په اړه


د کتاب نوم : د فقهي کتابونو له پاڼو څخه (٦)

ليکوال : مفتي کفايت الله وردګ

د کمپيوټر چارې : محمد نذير (ذبيح) 03138182431

د چاپ چارې : ابو منظر (افغاني)

د چاپ وار : لمړی

د چاپ شمېره : ۱۰۰۰ ټوکه

ZamZam



زم زم

Publication Company

خپرندويه ټولنه

Zamzam_publication@yahoo.com



00923009808094
00923009101098

Unit R 7 Alwajid Plaza, Faisalcolony Chawk, Dalazak road
Peshawar, KPK, Pakistan




# د فقهي کتابونو له پاڼو څخه

په زړونو کې د اسلامي جذبې لرونکو څو ورونو زمونږ ددې لپاره ملا تړلې ده چې تر پورتني نوم لاندې د کتابونو یوه سلسله روانه وساتو پدې سلسله کې مونږ کوښښ کوو چې په ساده او روانه پښتو کې د یني ضروري مسئلې را غونډې او خپلو پښتنو ورونو ته یې وړاندې کړو سره ددې چې پدې موضوع کې کتابونه له وړاندې نه هم ډېر دي هرچا د خپل وس مطابق کوښښ کړی دی مونږ د هغوی د ټولو کوښښونو قدر کوو او د الله ① نه ورته اجر عظیم غواړو لکن په زمزم کې شریکو ملګرو چې ددې سلسلې لپاره کومه نقشه تیاره کړېده هغه تر بهتر څخه هم بهترینه ده پدې سلسله کې به داسې مسئلې را جمع کیږي چې په اسلامي معلوماتو کې څوک د صفر نه واخلې د مهارت تر حد پورې یې ورسوي او ددې سلسلې به له ډېرو صفاتو څخه یو صفت دا وي چې که څوک په ځان ددې د مطالعې التزام وکوي نو بغیر د استاذ نه به په کور کې دی ترینه داسې مسئلې زده کولی شي لکه ژوندی استاذ چې دده سره په کور کې وي .

پدې کتابونو کې :

تاسې ته ستاسې په ژبه ديني مسائل وړاندې کول .

لتاسې سره د سمې لارې په پيدا کولو کې مرسته کول .

تاسې ته د اسلامي مطالعې لپاره د ښو او فايده منو موادو په لاس درکول .

له لويو کتابونو څخه لويې خبرې تاسې ته ستاسې د اسانتيا لپاره د وړو رسالو په شکل کې درکول .

ديني ضروري مسئلې چې کېداى شي اوس ستاسې هېرې شوې وي بيرته تاسې ته در په زړه کول .

مقدس دين ته په ښکلې پښتو ژبه خدمت کول .

او داسې نور مطلبونه خوندي دي .

پدې سلسله کې مونږ کوښښ کوو چې يوه خبره هم د خپل دماغ نه پکې ځاى نه کړو د کتاب په آخر کې به مونږ د هغه فتاواوو او کتابونو لست خامخا ستاسې خدمت ته وړاندې کوو چې مونږ ترېنه اخذ کوو او په دې رساله کې به ټولې خبرې د حضرت امام ابي حنيفه رحمه الله د مذهب او مسلک مطابق وي .

که پدې اړه ستاسې څه ډول اعتراض، سوال، نيوکه، نکته، نظريه او يا مشوره وي نو ددې سلسلې چلونکي به يې لتاسې څخه نه يوازې د کور

ودانـي پـه ويـلـو سره پـه وريـن تـنـدي واوري بـلـكـه د بـيـا چـاپ كـولـو پـه وخت بـه  سـتـاسـې مـشـوره د خـپـلـو كـتـابـونـو ښـائـسـت وګـرځـوي

لله الـحـمـد داده سـتـاسـې تـر لاسـونـو پـورې ددې مـبـاركـې لـړۍ شـپـږمـه  كـړۍ در ورسـېـده  او پـدې كـړۍ كـې مـونـږ  د ښـځـو ځـيـنـې خـاصـې مـسـئـلـې را ټـولـوو او ځـيـنـې هـغـه پـوښـتـنـې او ځـوابـونـه لـتـاسـې سره شريـكـوو چـې لـه ځـيـنـې مـشـهـورو عـلـمـاوو څـخـه  شـوي دي او هـغـوى ورتـه ځـوابـونـه وركـړي دي  .

مـنـنـه

د زمـزم خـپـرنـدويـه ټـولـنـې اداره

E-mail: zamzam_publication@yahoo.com

Fb.com/zamzam07



# سریــزه

د جهـان د تــاریـخ لــه شروع نــه تــر اوسه پــورې چې اسلام ښځې تــه کـوم مقــام ورکـړی دی هغـه بـل دیـن ، بـل مـذهب، بـلـې مـعـاشرې او جـامـعې نــه دی ورکـړی پـه اسلام کې ښځه کـه پـه هره نـګـاه ده کـه هغـه یـوه محتـرمـه مـور ده ، کـه هغـه یـوه د شفقـت سمبـول لـور ده او کـه هغـه یـوه د عزت نـمـونـه خـور ده او کـه هرڅوک ده نـو اسلام ورتـه پـه درنـده سـتـرګـه کـتـلـې دي پـه داسې وخت کې چې د انسـان مـور او پـلار دواړه والـدیـن دی لـکن کـلـه چې رسول الله ﷺ تـه یـو صحابـي راغـلـو ورڅخه یـې وپـوښتـل : پـه مـا بـانـدې تـر ټـولـو نـه زیـات د چا حق دی؟ رسول الله ﷺ ورتـه وفـرمـایـل : سـتـا د مـور

صحابـي ورڅخه و پـوښتـل بـیـا د چا؟

رسول الله ﷺ ورتـه وویـل : سـتـا د مـور

صحابـي بـیـا ورتـه خپـلـه پـوښتـنـه تـکـرار کـړه : بـیـا د چـا؟

رسول الله ﷺ ورتـه وویـل : سـتـا د مـور .

صحابـي بـیـا ورڅخه وپـوښتـل بـیـا د چا: رسول الله ﷺ ورتـه وویـل : سـتـا د پـلار .

وجـه یـې دا ده چې اسلام د هغـه ټـولـو تـکـلـیـفـونـو قـدر کـوي چې مـور یـې د خپـل مـاشوم سره تـېـروي نـو اسلام ځکـه خپـلـو پـیـروانـو تـه پـدې اړه زیـات تـاکـیـد کـوي چې هغـوی دې د خپـلـو مـیـنـدو زیـات قـدر وکـوي او چې کـلـه ا لله ➢ ټـولـو مـومـنـانـو تـه یـو مـثـال وړانـدې کـول غـواړي نـو د کـوم پـیـغـمـبـر مـثـال ورتـه

نه وړاندې کوي بلکه د يوې ښځې مثال ورته وړاندې کوي او فرمايي :

سورة التحريم آية ۱۱

ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا لِّلَّذِيۡنَ اٰمَنُوا امۡرَاَتَ فِرۡعَوۡنَ ۘ اِذۡ قَالَتۡ رَبِّ ابۡنِ لِىۡ عِنۡدَكَ بَيۡتًا فِى الۡجَنَّةِ وَ نَجِّنِىۡ مِنۡ فِرۡعَوۡنَ وَ عَمَلِهٖ وَ نَجِّنِىۡ مِنَ الۡقَوۡمِ الظّٰلِمِيۡنَ ۙ‏ (۱۱)

ترجمه : او الله ➢ د مسلمانانو لپاره د فرعون د مېرمن مثال بيان کړی دی کله چې هغې له الله ➢ نه غوښتنه وکوله ويې ويل ای الله ➢ زما لپاره په جنت کې د خپل ځان سره کور جوړ کړه ماته د فرعون او دهغه د عمل څخه نجات راکړه او ماته له ظالمانو څخه نجات راکړه .

او بيا يې په همدې پسې د بل ښکلي انسانيت مثال هغه هم د يوې ښځې په شکل کې وړاندې کړو او ويې فرمايل :

سورة التحريم آية ۱۲

وَ مَرۡيَمَ ابۡنَتَ عِمۡرٰنَ الَّتِىۡۤ اَحۡصَنَتۡ فَرۡجَهَا فَنَفَخۡنَا فِيۡهِ مِنۡ رُّوۡحِنَا وَ صَدَّقَتۡ بِكَلِمٰتِ رَبِّهَا وَ كُتُبِهٖ وَ كَانَتۡ مِنَ الۡقٰنِتِيۡنَ (۱۲)

ترجمه : او (دوهم مثال) د مريم چې د عمران لور وه د خپلې شرمګاه ساتنه يې وکوله بيا مونږ په هغې کې خپل روح پو کړو او هغې د خپل

رب د کلام او د هغه د کتابونو تصديق وکولو او د هغه کسانو له جُملې څخه شوه چې پرهېزګاران دي .

د اسلام له نظره ښځه د جامعې نيمه برخه ده او د نيمې نورې برخې پالنه هم همدوی کوي او همدوی دي چې الله ➢ د خلکو لپاره د سکون او ارام وسيله ګرځولې ده الله ➢ د دوی او نورو انسانانو (سړيو) په مينځ کې مينه او رحمت پيدا کړی دی او دا ټول د الله ➢ د قدرت له نښو څخه دي الله ➢ فرمايي :

سورة الرُّوم آية ٢١

وَ مِنۡ اٰيٰتِهٖۤ اَنۡ خَلَقَ لَكُمۡ مِّنۡ اَنۡفُسِكُمۡ اَزۡوَاجًا لِّتَسۡكُنُوۡۤا اِلَيۡهَا وَ جَعَلَ بَيۡنَكُمۡ مَّوَدَّةً وَّ رَحۡمَةً ؕ اِنَّ فِىۡ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوۡمٍ يَّتَفَكَّرُوۡنَ (٢١)

ترجمه : او د هغه د نښو د قدرت څخه دي چې هغه تاسې ته ستاسې له نفسونو څخه جوړې پيدا کړې ترڅو تاسې (د هغوی طرف ته په ميلان سره) سکون پيدا کړئ او ستاسې په مينځ کې يې مينه او مهرباني پيدا کړه بېشکه پدې کې نښې د قدرت دي د هغه کسانو لپاره چې هغوی فکر (غور) کوي.

او اسلام پداسې وخت کې ښځې ته قدر ورکړو چې ددې قدر مکمل تر پښو لاندی شوی وو او د انسانيت په سترګه نه ورته کتل کېدل بلکه اکثرو ته خو د ژوند کولو حق نه ورکول کېدو او

په ماشومتوب کې ژوندۍ تر خاورو لاندې کېدلې او کومې به چې ژوندۍ هم پاتې شوې نو د دنيا د يو سپک جنس په توګه استعمالېدلې دا سپکاوی صرف په عربي او مشرکه جامعه کې نه بلکه په ټولو جامعو کې چې هغوی د مذهبي توب دعوه هم کوله لکه يهوديان او نصرانيان همدارنګه د هغه وخت په موجوده نورو جامعو کې لکه فارسيان روميان او داسې نورو ټولو خلکو کې په يو ډول وو.

ددې توهين او سپکاوي خاتمه الله ➢ پخپله وکوله او د پای ټکی يې ورته کېښود له هغه ذلت څخه يې ښځه را پورته کړه او په انسانيت کې يې د نارينه سره برابره کړه په قران کريم کې چې الله ➢ کله د تېر تاريخ د عبرت نه ډکې قصې کوي نو په هغې کې هم د ښځې د قدر او عزت نه ډکه ونډه په هر ځای کې ښکاره کوي د مثال په ډول .

# حضرت حواء علیها السلام

الله ➢ دا په جنت کې د حضرت آدم ⌨ سره د هغه ⌨ څخه هغه وخت پیدا کړه چې حضرت آدم ⌨ ته ځان په جنت کې یوازې ښکاره شو نو مېرمن یې بهترینه جوړه وه چې الله ➢ په جنت کې ده ته ورکړه اود اسلام نه مخکې به خلکو چې د حضرت آدم او حواء علیهما السلام قصې کولې نو د جنت نه په ښکته کېدلو کې به یې ټول قصور د حضرت حواء ګڼلو ځکه ویل به یې چې همدا ددې سبب شوې ده چې حضرت آدم ⌨ د جنت نه را وویستل شو لکن قران کریم دا نه دي ویلي بلکه په قرآن کریم کې دواړو ته یو ډول خطاب شوی دی الله ➢ فرمایي کله چې دوی هغه ونه و څکله چې دوی ورڅخه منع شوي وو نو الله ➢ ورته و فرمایل :

**سورة اعراف آیة ٢٢**

**اَلَمۡ اَنۡهَكُمَا عَنۡ تِلۡكُمَا الشَّجَرَةِ وَ اَقُلۡ لَّكُمَاۤ اِنَّ الشَّيۡطٰنَ لَـكُمَا عَدُوٌّ مُّبِيۡنٌ (٢٢)**

ترجمه : آیا ما تاسې ددې ونې څخه منع کړي نه وئ او تاسې ته مې ویلي نه وو چې شیطان ستاسې ښکاره دښمن دی؟

او بیا وروسته ددېنه د حضرت آ دم ⌨ سره په دنیا کې تر ٩٠٠ کلونو څخه زیات ژوندي پاتې

شول او په شریکه سره یې ژوند وکولو او په شریکه سره یې د ژوند مشکلات برداشت کول او په شریکه یې ژوند مخ په وړاندې بولو تردې چې الله ➢ ورڅخه ماشومان پیدا کړل او په دنیا کې نن ټول انسانان د همدوی اولاد دی .

## حضرت سارة

(د حضرت ابراهیم ⌨ مېرمن او د حضرت اسحاق ⌨ مور او د حضرت یعقوب ⌨ نیا)

یوه له هغه بیبیانو څخه وه چې الله ➢ یې په قران کریم کې سره ددې چې نوم نه دی یاد کړی لکن په مختلفو ځایونو کې یې ورته اشاره کړېده دا هغه وفا داره مېرمن وه چې هغه وخت یې د حضرت ابراهیم ⌨ تصدیق او ملګري کړې وه چې ټولو خلکو یې تکذیب او دښمني کوله د اسلام مقدس کتاب قرآن چې په مختلفو ځایونو کې ددې مبارکې واقعه بیانوي ددې قدر کوي ددې په اړه الله ➢ فرمایي :

سورة هود آية ۷۱

وَ امْرَاَتُہٗ قَآئِمَۃٌ فَضَحِکَتۡ فَبَشَّرۡنٰہَا بِاِسۡحٰقَ ۙ وَ مِنۡ وَّرَآءِ اِسۡحٰقَ یَعۡقُوۡبَ (۷۱)

ترجمه : (کله چې ملائکو د حضرت ابراهیم سره خبرې کولې) نو دده مېرمن ولاړه وه هغې وخندل بیا مونږ ورته د اسحاق او د اسحاق نه وروسته د یعقوب د پیدا کېدو زېری ورکړو .

او ددې د ایمان او پاکدامني نتیجه وه چې کله دې له خپل خاوند سره د هجرت په سلسله کې مصر ته ورسېده (قصه یې مشهوره ده) نو د مصر بادشاه هغه ونیوله او د ټول کوښښ وروسته هم هغه پدې ونه توانېدو چې دې مبارکې ته خپل پلید لاس ور ورسوي نو الله ➢ ددې حفاظت ددې د کرامت په توګه وساتلو او دا د الله ➢ لوی رحمت او یوې ښځې ته لوی عزت ورکول دي .



# حضرت هاجر علیها السلام

## د حضرت اسمعیل ⌨ مور

چې کله حضرت ابراهیم ⌨ بوتله او په خالي دښته کې یې پرېښوده نو چې کله حضرت ابراهیم په همداسې حالت کې له دوی نه روانېدو نو حضرت هاجر حیرانه وه چې ابراهیم ⌨ ما ددې ماشوم سره په دښته کې ولې پرېږدي؟ نو ورڅخه یې پوښتنه وکوله تاته الله ➢ پدې امر کړی دی چې مونږ دلته پرېږده؟ حضرت ابراهیم ⌨ ورته وویل: هو!

نو دې مبارکې بغیر ددې چې پوښتنه ترې وکوې چې ولې؟ څنګه؟ صرف ورته یې په پوره ډاډ او اطمنان سره وویل: صحیح ده بیا مو نو الله ➢ نه ضائع کوي.

الله ➢ ددې استقامت، ایمان، یقین ته دومره قدر ورکړو چې تر قیامت پورې ټومره مسلمانان حج او عمره کوي په هغه لارو به سعی کوي چې دې مبارکې کړې ده (د صفا او مروه په مینځ کې) او ټول مسلمانان هم دا قانون او د هغې قدر داني په خوشحالۍ سره مني او په یو کال کې په کروړونو خلک د صفا او مروه په مینځ کې سعی کوي د یوې زنانه عمل ته دومره په غټه سترګه

کتل صرف په اسلام کې مثال لري په بل دين کې يې څوک نمونه نشي وړاندې کولی .

همدارنګه هغه وخت چې دې مبارکې ته شيطان د انسان په صورت او شکل کې ښکاره کېدو او دا يې ددې څخه منع کوله چې د الله ➢ فيصلې ته غاړه کيږدي او حضرت ابراهيم ⌨ ته اجازه ورکړي چې ددې زوی ذبح کړي نو دې مبارکې هغه مردود په کاڼو باندې ويشتو نو اسلام دلته بيا يوې ښځې ته دومره د عزت او قدر په نظر ګوري چې دهغې مبارکې په سنتو باندې له تلو سره به تر قيامت پورې حاجيان په هغه ځای کې په شيطان باندې د شګو وارونه کوي دلته يو ځل بيا ويل غواړم چې يوازې اسلام دی چې ديوې ښځې يو عمل ته دومره د عزت په نظر ګوري چې تر قيامته پورې يې مسلمانان په ورين تندي عملي کوي او داسې مثال په بل دين او بله جامعه کې څوک نشي وړاندې کولی .



# ام موسى

(دحضرت موسى ⌨ مور)

چې د الله تعالى نه ډاريدونكې او الله ➢ ته ګرانه ښځه وه نو الله ➢ په څه ډول هغې ته هدايت وكولو چې هغې خپل ماشوم په يو بكس كې بند كړو او هغه يې بيا په نيل كې پرېښود او بيا الله په دې باندې دومره احسان وكولو چې ددې ماشوم يې بېرته دې ته را وګرځولو هم يې د خپل ماشوم په خدمت او كتنه خپلې سترګې يخولې او هم يې دهغه د خدمت په بدل كې د فرعون له كورنۍ څخه عوض اخستلو.

# آسيه

(د فرعون مېرمن)

الله ➢ په خپل قران كريم (آيت لږ وړاندې تېر شو) عزت وركړى دى او دا چې د فرعون څخه په پټه مسلمانه شوې وه او د الله ➢ وحدانيت ئې منلو او يوازې هماغه يې د عبادت لائق ګڼلو نو الله ددې د عقيدې قدر كولو نو ځكه يې هغه په قران كريم كې د ټولو مسلمانانو لپاره د مثال په توګه ياده كړېده او رسول الله ☸ يې هم په اړه فرمايلي دي چې مكملې ښځې څلور دي يوه يې د فرعون ښځه آسيه پكې ياده كړېده دا چې

اسلام دېته دومره په درنده سترګه ګوري دا هماغه ښځه ده چې د فرعون سره په عيش او راحت کې لکن ګمراهي کې خوښه نه وه بلکه د الله ➢ په سمه لاره روانه شوې وه او اسلام يې قبول کړی وو او پدې لاره کې يې هر تکليف قبول کړو لکن بېرته د ګمراهي لارې ته ور ونه ګرځېده او لکه په پورتني آيت کې چې تېره شوه الله ➢ ته يې سوال وکولو چې زما لپاره په جنت کې کور جوړ کړه الله ➢ ورته جوړکړو او دا په شهادت ورسېده او ددې له بدن څخه د روح له وتلو نه وړاندې يې په جنت کې خپل کور وليدو او دې مبارکې ورته وخندل.

## حضرت ماشطه

(دفرعون د لور خادمه (دهغې د سر ګمنځ کونکې))

د فرعون د کورنۍ په خادمانو کې حساب وه لکن الله ➢ ورته هدايت وکولو او ايمان يې قبول کړو چې فرعون ورته هرڅومره اخطارونه ورکړل ددې په ايمان کې کمزوري ښکاره نه شوه تردې چې پنځه زامن يې وو فرعون ورته د ټولو د وژلو اخطار ورکړو لکن دا بيا هم تر خپل ايمان تېره نه شوه تردې چې فرعون هغه ټول ورته شهيدان

کړل او په ګرم کړل شویو تیلو کې یې ورته وسوزول لکن دا تر هغه وخته پورې په خپل ایمان محکمه وه ترڅو یې الله ➢ شهادت نصیب کړو په یو حدیث کې روایت شوی دی چې د معراج په شپه رسول الله ☸ له جنت څخه د ماشطې بوی محسوس کړی وو.

## د حضرت شعیب ⌨ لوراني

د حضرت شعیب ⌨ په دوه لورانو کې یوه د حضرت موسی⌨ مېرمن شوه کله چې موسی ⌨ د فرعون څخه و تښتېدو نو د شعیب ⌨ قوم خواته یې پناه وروړه هلته یې ولیدل چې خلک مالونه اوبه کوي او دوه ښځې دي چې هغوی خپل مالونه را ګرځوي چې پوښتنه یې وکوله دوی ولې داسې کوي هغوی وویل : مونږ هغه وخت خپل مالونه اوبه کوو چې دا نور شپونکیان لاړ شي ځکه مونږ په کور کې داسې نارینه نه لرو چې زمونږ مالونه را ته اوبه کړي او زمونږ والد سپین ږیری دی نو ده ورسره د مال په اوبه کولو کې مرسته وکوله هغوی چې کور ته لاړې نو بېرته یوه په موسی ⌨ پسې راغله دلته ښکاریږي چې د الله ➢ دهغې مبارکې دا راتلل او د راتلو

➢ د هغې په اړه الله خوښه شوه طریقه ځومره
په قران کریم کې فرمایي:

سورة القصص آية ٢٥

فَجَاءتْهُ إِحْدَاهُمَا تَمْشِي عَلَى اسْتِحْيَاء

په هغوی کې یوه ورته پداسې حال کې راغله چې
په حیاء کې تله

➢ الله په خپل مبارک کلام کې ویلي دي چې دا په
حیاء کې را روانه وه نو په رښتوني معنی سره
دا د یوې ښځې د قدر او عزت آخري مرتبه ده چې
➢ الله یې د حیاء ستاینه کوي .

او د حضرت شعیب ⌨ د لورانو تقوی او ښه
انسانیت او پاکې په همدې آیت کې لږ مخکې
ښکاره کیږي چې کله حضرت موسی ⌨ د هغوی نه
پوښتنه وکوله چې تاسې ولې خپل مالونه اوبو ته
نه ور پرېږدئ؟ هغوی ویلي وو :

لَا نَسْقِيْ حَتّٰى يُصْدِرَ الرِّعَآءُ

ترجمه : یعني مونږ تر هغه وخته پورې خپل
مالونه نه اوبه کوو ترڅو نور شپونکیان خپاره
نه شي .. یعني مونږ د اجنبي سړیو سره نه
شریکېږو، مونږ د اجنبي کسانو سره په یو ځای
په بیر بار کې نه داخلیږو مونږ د اجنبي سړیو
څخه ځان لرې ساتو سره ددې که پدې کې مونږ ته
تکلیف هم وي لکن له هغوی سره خلطیت نه کوو

.... نو څکه الله ➢ هم د دوی د پاکي قدر کوي او د دوی د حیاء ستاینه کوي.

## د حضرت ایوب ⌨ مېرمن

هغه وخت چې د حضرت ایوب ⌨ په بدن باندې بیماري ولګېده او هېڅوک نېږدې نه ورتلل دهغه مېرمن یوازینی هغه انسان وو چې دده خدمت یې په زړه ، ځان او مال سره کولو او په هر قسم حالاتو کې یې له هغه سره وفا وکوله او هر ډول تکلیفونه یې د هغه سره برداشت کړل الله ➢ چې په هرڅه خبر او په هرڅه عالم اود هر ډول حالت لیدونکی دی ددې ښځې ایمانداري امانت او دیانت یې خوښ کړو څکه ددې په اړه فرمایي :

إِنَّا وَجَدْنَاهُ صَابِرًا ۚ نِعْمَ الْعَبْدُ ۖ إِنَّهُ أَوَّابٌ

ترجمه : هغه مونږ صابر انسان پیدا کړو هغه ډېر ښه بنده دی او له رجوع کونکو څخه دی

نو الله ➢ چې د چا صفت وکوي چې دا ښه بنده دی ددېنه لوړه قدرداني بیا څوک د چا کولی شي؟

# امرائة عمران

(د حضرت مریم علیها السلام مور)

چې کله یې هغه څه چې ددې په ګېډه کې وو خاص د الله ➢ لپاره نذر او وقف کړل او پدې سره یې هیڅ ډول بل نیت نه وو نو دومره په اخلاص باندې وقف کول یې الله ➢ خوښ کړل او په خپل مقدس کتاب کې یې دهغې ستاینه وکوله .

# حضرت مریم علیها السلام

د ټول جهان په ښځو کې نه غوره ښځه ده او د پاکي د تعریف لپاره یې آیتونه راغلي دي الله ➢ په خپل مقدس کتاب کې فرمایي چې دې د خپلې شرمګاه حفاظت وکولو او هغه کسانو چې پدې باندې به یې غلط شک کولو نو د غېږې ماشوم (حضرت عیسی علیه السلام) یې الله ➢ په خبرو راوستلو او هغه به ددې مبارکې صفایي بیانوله .

دا ټول د ښځې د مقام ښکاره دلیلونه دي او هر یو دلیل په ښکاره سره ثابتوي چې اسلام ښځې ته په یو داسې مقام او مرتبه قائل دی چې د اسلام نه بغیر بل دین او مذهب او معاشره ښځې ته هغه مرتبه نشي ورکولی همدارنګه د رسول الله ☸ د لورانو او بیبیبانو او صحابیاتو تاریخ او د

هغوی هره واقعه بېله بېله په ټول ژوند کې د یوې مسلمانې ښځې لپاره بهترین سبق دی .

## نېکه مېرمن

رسول الله ﷺ د پاکې او نیکې مسلمانې ښځې په اړه فرمایي :

المرأة إذا صلت خمسها ، وصامت شهرها ، وأحصنت فرجها ، وأطاعت زوجها ، فلتدخل من أی أبواب الجنة شائت

ترجمه : ښځه چې خپل پنځه وخته مونځ وکوي د روژې میاشت یې روژه ونیسي ، خپله شرمګاه د ګناه څخه وساتي ، د خپل خاوند اطاعت وکوي بیا یې چې له کومې دروازې نه خوښه وي جنت ته د ننوزي (حدیث حسن اخرجه ابو نعیم)

د حضرت ابي امامة ❼ نه روایت دی هغه وایې چې رسول الله ﷺ فرمایل ما استفاد المؤمن بعد تقوی الله - عز وجل - خیراً له من زوجة صالحة إن أمرها أطاعته، وإن نظر إلیها سرته، وإن أقسم علیها أبرته، وإن غاب عنها نصحته في نفسها وماله. رواه ابن ماجه

ترجمه : د الله د تقوی نه بغیر مسلمان تر نیکې ښځې غوره شی لاس ته نه دي راوړي چې امر ورته وکوي اطاعت یې کوي چې ورته وګوري (لیدل یې) خوشحال کړي ، که پداسې شي باندې قسم وکوي چې ددې په اختیار کې وي نو له قسم نه یې خلاص کړي او که خاوند ترینه چېرته لاړ شي نو دا یې په کور کې د مال او ددې د ځان ساتنه کوي .

د ښځو په اړه د حضرت داود ⌨ یو قول نقل شوی دی چې هغه فرمایلي دي :

بده مېرمن داسې وي لکه ډېر زیات دروند بار د زاړه سړي په اوږو باندې چې هغه یې د وړلو او پورته کولو نه عاجز وي او ښه مېرمن داسې وي لکه د سرو زرو نه جوړ شوی تاج د سړي په سر باندې چې کله ورته ګوري خوشحالیږي (مجمع الامثال (میداني))

حضرت علي ❼ فرمایي :

چاته چې څلور شیان ورکړل شي هغه ته د دنیا او آخرت خوشحالیانې نصیب کیږي .

١. داسې تقوی چې دی له حرامو کارونو څخه منع کړي .

٢. ښه اخلاق چې په هغو سره دی په مخلوق کې ښه ژوند وکوي.

٣. داسې صبر او تحمل چې دی په هغه سره د جاهل جهالت تحمل کړلی شي .

٤. نېکه مېرمن چې دده سره د دين او دنيا په کارونو کې مرسته وکوي.

د اصمعي رحمه الله نه روايت شوی دی چې هغه فرمايل : د يو بادشاه (نصر بن سيار) قول دی هغه به فرمايل:

د بادشاه لپاره شپږ شيان ضروري دي .

١. داسې وزير چې په هرشي کې وربانډې اعتماد کولی شي .

٢. داسې قلعه چې د وېرې په وخت کې ورته رجوع وکوي او دده يقين وي چې هغه ده ته نجات ورکولی شي (ښه آس)

٣. داسې توره چې دده يقين وي چې د ضرورت په وخت کې دا توره خپل کار نشي پرېښودلی .

٤. داسې يوه سپکه ذخيره چې دی يې ورسره واخلي نو بې تکليفه يې وړلی شي .

٥. داسې يوه مېرمن چې کله خاوند ورشي د خاوند څخه ټول غمونه لرې کړي.

٦. داسې خوراک چې دومره خوندور وي چې دده خوراک زړه ته نه کيږي بيا يې هم وخوري .

رسول الله ﷺ فرمايي :

د سړي نېکبختي درې شيان دي :

١. نېکه ښځه .

٢. ښه سپرلي .

٣. فراخ کور .

او د سړي کم بختي په دريو شيانو کې ده .

۱. بده ښځه
۲. بده سپرلي
۳. تنګ کور .
(صحیح الجامع للسیوطي)

په بل ځای کې رسول الله ﷺ فرمايي :
شکر کونکی زړه ، ذکر کونکې ژبه او نېکه ښځه چې ستا سره ستا د دین او دنیا په کارونو کې مرسته کوي دا بهترین هغه څه دي چې انسان يې ذخيره کوي (صحیح الجامع)

لکه مخکې چې په مقدمه کې تېر شول پدې کتاب کې به مونږ په يوځه داسې مسئلو باندې بحث کوو چې هغه تر ښځو پورې خاصې دي نو مخکې ددې چې زه د ښځو په اړه نورې خبرې هم اوږدې کړم د هغه فقهي مسئلو لوري ته ورځم چې هغه تر ښځو پورې خاصې دي .

مونږ به کوښښ کوو چې هغه مسئلې را ټولې کړو چې هغو ته د هرې مسلمانې ښځې د پوهې ضرورت وي او ډېرې خو داسې خبرې هم وي چې يوه مسلمانه ښځه نشي کولی د امام او عالم نه يې پوښتنه وکوي نو انشاء الله ددې کتاب په مرسته به د ډېر خويندو ډېر مشکلات حل شي او ددې لپاره چې مونږ ددې مسئلو اصلي حل ته ورسيږو پر خپل ميز مو له مخکې نه هغه کتابونه ايښي دي چې په ټوله دنيا کې د مختلفو ښځو ليکوالانو له خوا ليکل شوي دي او هغوی په سمه توګه د مسئلې بيخ ته

رسېدلي دي مونږ به د هغوی د کتابونو څخه هم اقتباسونه کوو او لکه دا سلسله چې تاسې ته معلومه ده ټولې مسئلې به د امام ابي حنيفه رحمه الله په مسلک تشريح کيږي .
او پدې برخه کې چې د نکاح څومره مسئلې دي تر خپلې وسې پورې هغه مونږ ددې کتاب څخه په وړاندې کتاب (پنځمه برخه) کې بيان کړې دي له هغه مسئلو نه دلته خپلې سترګې پټوو او وړاندې ځو.

## د ښځې او خاوند مرتبه

ټولې هغه عقيدې چې وايي نارينه او ښځينه په هرڅه کې سره برابر دي دا عقيده عقلاً او شرعاً باطله ده ځکه هر صنف (نارينه او ښځينه) خپلې معلومې وظيفې لري او خپل صلاحتيونه لري او د يوې کاميابې او خوشحاله جامعې د جوړولو په موخه الله ➢ دواړو ته وظيفې او کارونه ور تقسيم کړي دي او دواړه طرفونه يې د هرډول حکمت د تقاضو سره سم پيدا کړي دي او ددې سره سره اسلام پدې خبره ټينګار کوي چې سړي په يوه مرتبه ا و درجه له ښځې څخه بهتري او غوره والی لري نو مسلمانه مېرمن به د خپل اسلاميت له امله په ورين تندي د خپل خاوند مرتبه په ځان مني

په قران کریم کې د حضرت مریم علیها السلام د مور قول الله ➢ مونږ ته نقل کړی دی چې هغه فرمایي :

سورة آل عمران آية ٣٦

وَلَيْسَ الذَّكَرُ كَالأُنثَى

ترجمه : نارینه لکه زنانه داسې نه دی (کوم کارونه چې نارینه کولی شي زنانه له هغه څخه عاجزه وي)

سورة البقرة آية ٢٢٨

وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِي عَلَيْهِنَّ بِالْمَعْرُوفِ وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ

ترجمه : او د دوی لپاره په خاوندانو باندې همدومره حقونه دي څومره چې په دوی باندې د خاوندانو دي او د سړیو لپاره په دوی باندې یوه درجه (بهتري) شته .

په بل ځای کې الله ➢ فرمایي :

سورة النساء آية ٣٤

الرِّجَالُ قَوَّامُونَ عَلَى النِّسَاء بِمَا فَضَّلَ اللّهُ بَعْضَهُمْ عَلَى بَعْضٍ وَبِمَا أَنفَقُواْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ فَالصَّالِحَاتُ قَانِتَاتٌ حَافِظَاتٌ لِّلْغَيْبِ بِمَا حَفِظَ اللّهُ وَاللاَّتِي تَخَافُونَ نُشُوزَهُنَّ فَعِظُوهُنَّ وَاهْجُرُوهُنَّ فِى الْمَضَاجِعِ وَاضْرِبُوهُنَّ فَإِنْ أَطَعْنَكُمْ فَلاَ تَبْغُواْ عَلَيْهِنَّ سَبِيلاً إِنَّ اللّهَ كَانَ عَلِيًّا كَبِيرًا.

ترجمه :سړي په ښځو باندې مسلط شوي دي ددې امله چې الله ① ځینې په ځینو باندې غوره پیدا کړي دي او همدارنګه ددې امله چې هغوی خپل مالونه مصرف کوي پس نېکې ښځې د خاوند په امر تلونکې وي او د خاوند په غیاب کې د هغه د مال او د خپل عزت ساتونکې وي او هغه چې تاسې وربانديې پوه شئ چې هغوی سرکشي کوي نو نصیحت ورته وکوئ که په نصیحت سمې نه شوې نو په بستره کې ترینه جدا شئ وهل ورکړئ که یې ستاسې متابعت وکولو نو بیا ورسره د جنګ لپاره بهانه مه لټوئ بېشکه الله ① تر هرڅه لوړ او لوی ذات دی .

په اسلامي فقه کې د ښځې اړوند څه خاصې مسئلې دي لکه مخکې چې تېر شول دا کتاب د همدې موضوع لپاره خاص کړل شوی دی اوس دادې وربانديې شروع کوو.



# د جینۍ بالغ کېدل

هلک او جینۍ چې ترڅو بالغ شوي نه وي نو د شریعت په احکامو باندې مکلف نه وي او کله چې بالغ شي نو د شریعت احکام عملي کول ورباندې لازم شي اوس دا چې جینۍ څه وخت بلوغ ته رسیږي بلوغ ته د رسېدلو لپاره خو یا نښې دي لکه :

١. احتلام (شیطاني خوب لیدل)

٢. حیض راتلل

٣. د شرمګاه په ساحه کې وېښته را شنه کېدل. (سره ددې چې امام ابو حنیفه رحمه الله وېښته را ختل د بلوغ نښه نه مني لکن ابو یوسف رحمه الله فرمایي چې دا یې هم نښه ده او د امام مالک او امام احمد ابن حنبل رحمه الله په مذهب دا په قطعي توګه د بلوغ نښه ګڼل کیږي)

او یا که دا نښې ونه لېدل شوې نو ١٥ کلنۍ ته رسېدل

امام ابن قدامة په مغني کې فرمایي :

وأما السن فإن البلوغ به في الغلام والجارية بخمس عشرة سنة

ترجمه : بېشکه د عمر په لحاظ په بلوغ باندې حکم په هلک او جینۍ کې اندازه کړل شوی دی په پنځلسو کلونو باندې .

په کنز الدقائق کې دي :

ویفتی بالبلوغ فیهما -أي الذکر والأنثی- بخمس عشرة سنة، وهذا عند أبي یوسف ومحمد-یرحمهما الله- وهو قول الشافعي وروایة عن أبي حنیفة

ترجمه : په هلک او جینۍ کې په بلوغ باندې په پنځلس کلنۍ کې حکم کیږي دا د ابي یوسف او محمد رحمهما الله په مذهب او دا د امام شافعي رحمه الله قول هم دی او د امام ابي حنیفه رحمه الله څخه هم یو روایت دی .

دلیل یې یو روایت دی حضرت ابن عمر ❼ فرمایي :

عرضني رسول الله ﷺ صلی الله علیه وسلم، یوم أحد في القتال وأنا ابن أربع عشرة سنة، فلم یجزني، وعرضني یوم الخندق، وأنا بن خمس عشرة سنة، فأجازني. متفق علیه

د احد په ورځ ما د جنګ لپاره تلل غوښتل رسول الله ﷺ زه وکتلم په هغه وخت کې زه د څوارلسو کلونو وم نو ماته یې د تللو اجازه را نه کړه او د خندق په ورځ زه د پنځلسو کلونو وم بیا یې اجازه راکړه .

د امام ابي حنيفه رحمه الله په بل روايت کې هغه فرمايي که د بلوغ نورې نښې مخکې موجودې نشي نو هلک په آتلس کلنۍ او جينۍ په اولس کلنۍ کې بلوغ ته رسيږي . (كنز الدقائق)
لكن فتوى يې په مخکني قول ده چې کله جينۍ او يا هلک د ۱۵ کلونو شي نو بيا د هغه په بلوغ باندې حکم کيږي او هغه بالغ ګڼل کيږي او په سن کې بيا هجري قمري کال پوره کېدل معتبر دي.



# طهارت

د زنانه د خاص اندام نه وتونکي شيان

## ۱. بول

د هر انسان نه په طبعي ډول سره وزي نجسې دي په وتلو سره يې اودس ماتيږي پوره تفصيل او مسئلې يې ددې سلسلې په اول کتاب کې تېر شوي دي .

## ۲. مني

دا يوه بهېدونکې ماده ده چې د نارينه او يا د زنانه له خاص اندام څخه وزي او په زنانه کې د رحم له لارې نه وزي د جماع يا احتلام (خوب لېدلو په حالت کې) او د زنانه په حق کې دا نرۍ او زېړوالي ته مائله ماده ده په هر صورت چې هرڅنګه وي په وتلو يې غسل واجبيږي .

### ۳. ودي

نرۍ سپينه ماده ده چې د بول نه وروسته او يا د کوم وزني شي پورته کولو نه وروسته د انسان له خاص اندام څخه وزي په وتلو يې صرف اودس دی او نجاست يې نجاست غليظه دی چې د درهم له اندازې نه په جامه زياته ولګيږي مونځ ورسره نه کيږي .

### ٤. حيض

سره وينه ده چې تور والي ته مائله وي يو ډول بد بوی لري د ښځې له رحم نه په خاص وخت او خاصه دوره کې وزي ترڅو چې دا وينه روانه وي دا د حيض په موده کې ده چې کله دا وينه ودريږي نو غسل واجبيږي د مسئلو تفصيل يې لږ وروسته را روان دی .

### ٥. نفاس

هغه وينه ده چې د ماشوم د پيدا کېدو نه وروسته په مسلسله توګه تر زيات نه زيات ٤٠ شپو پورې را وزي (دا څلوېښت يې زياته موده ده کله تردې نه په لنډ وخت کې هم قطع شي)

⇦ په دې دواړو حالتونو (حيض او نفاس) کې ښځه مونځ نه کوي روژه نه نيسي ترڅو ددې دواړو څخه پاکه نشي .

### ٦. الاستحاضة

دا سره وينه ده د ښځې له شرمگاه نه را وزي وخت يې معلوم نه وي لکن ترڅو چې د حيض شپې وې حيض حساب کيږي او کنه نو بيا دا بيماري ده په راوتلو يې اودس واجبيږي .

### ٧. سپين

يو ډول لوندوالی وي چې کله زيات شي په رنگ کې د هگۍ د سپينو په ډول شي او کله کله چې د نورو بکترياوو سره گډ شي بد بوی پيدا کوي او کله کله يې په وتلو باندې ښځه نه پوهيږي او کله کله د څه بېماريو له امله يې وتل زيات شي .........

په پورتنيو شيانو کې چې په کومو کې نارينه او ښځينه دواړه شريکان دي د هغې تفصيل ددې سلسلې په اول کتاب کې مونږ تېر کړی دی راساً د ښځو خاصو مسئلو ته ورځم

## حيض

⇦ حيض په لغت کې بهېدلو ته وايي عرب وايي حاض السيل (کله چې روان شي او وبهيږي)

⇦ د حنفيانو په اصطلاح کې : الحيض دم ينفضه رحم امرأة عن غير داء وصفر (هغه وينې ته وايي چې د بالغې ښځې رحم يې بهر ته را شيندي بغير د بيماري او زيږ والي نه يعني په عادي حالت کې وي)

⇦ حيض عربي ټکی دی چې په پښتو فارسي او اردو ټولو ژبو کې همدا لفظ کارول کيږي او په عربي کې ددې وينې لپاره نور نومونه هم دي چې همدا يو حيض پکې زيات مشهور دی په عربي کې ديته طمث ، ضحک، عراک، اعصار او اکبار او ځينې نور نومونه هم کارول کيږي د حضرت ام سلمة رضی الله عنها په يو حديث کې ورته نفاس هم ويل شوی دی .

## د حيض راتلل

حيض څه وخت شروع کيږي دا په څو شيانو ښکاره کيږي چې دا حيض دی .

⇦ کله د عمر په حساب وي کله چې د جينۍ عمر له نه کلونو څخه تېر شي نو بيا ورته حيض راتلی شي د نه کلنۍ څخه وروسته هر وخت د

شروع کېدو امکان لري . تر هغه وخته پورې چې هغه دومره زړه شي چې بیا ورته حیض نه راځي او دا عمر هم علماوو ورباندې خبرې کړې دي چې د څه وخت نه وروسته ښځې ته حیض نه راځي؟ د علماوو له نظره چې د ښځې عمر تر ٥٥ کلونو زیات شي بیا ورته حیض نه راځي او همدا غوره قول دی (محیط) او په همدې باندې اعتمادی دی (السراج الوهاج) په همدې باندې فتوی ده (معراج الدرایة)

⇦ وینه چې د خاص اندام بهرنۍ برخې ته کله را ورسیږي نو دهغې نه وروسته دا حیض حسابیږي او که د څه مانع له مخې هغه بهرنۍ برخې ته را ونه وتله او یا یې څه ټوټه په خاص اندام کې ایښې وه هغه ټوټې بهر ته د وینې راوتلو مخه نیولې وه چې کله یې هغه ورڅخه لرې کړه نو وینه را ووتله نو کوم وخت یې چې دا ټوټه لرې کړه له اوس نه یې حیض شروع شو (المحیط)

⇦ که پاکه ښځه وه (د حیض په وخت کې نه وه) او د حیض شپې یې را نېږدې شوې وې په خاص اندام کې یې په کېښودل شوي شي باندې د وینې اثر ولیدو نو کوم وخت یې چې دا شی له خاص اندام څخه لرې کړو نو اوس یې د حیض موده شروع شوه . (عالمګیري)

⇦ او هغه ښځه چې د حیض په دوران کې وي او په خاص اندام کې یې کوم شی ایښي وو چې هغه یې

را لري کړل د ويني اثر وربانديږ نه ښکاره کېدو نو ددې څخه وروسته دا پاکه حسابيږي (شرح الوقاية)

- د حيض په وينه کې بهېدل ضروري نه دي (لکه په پورتنيو صورتونو کې چې صرف د ويني اثر هم ښکاره شي او يا يې بالکل اثر ښکاره نه شي حکم وربانديږ کېدلی شي يا د حيض او يا د پاکي)
- د حيض وينه په مختلفو رنګونو کې کېدلی شي تور، زيړ، خړ، شين، خاورين رنګونه د ځيني حالاتو د بدلون له امله اخستلی شي (النهاية)
- نو مطلب يې دادی چې که په هغه ټوټه چې زنانه په خاص اندام کې ايښې وي که ددې رنګونو څخه هر يو رنګ ښکاره شو نو دا حيض دی او که پاک سپين والی وربانديږ ښکاره شو دا بيا پاکي ده همدارنګه که په ټوټه بانديږ لګېدلی لوندوالی وو ترڅو چې لوند وو نو سپين ښکاره کېدو او چې کله وچ شو نو رنګ يې تغير شو يا زيړ شو او يا شين يا سور او يا تور نو بيا هم دا پاکي ده د اول کتلو په وخت کې رنګ ته اعتبار شته وروسته چې کله هغه لوندوالی وچ شي نو چې هر رنګ ته تغير شي هغه تغير يې اعتبار نه لري. (التجنيس)

# د حيض د وينې وخت

⇦ د حضرت امام ابي حنيفه رحمه الله په مذهب لږ تر لږه درې ورځې او شپې وي (التبيين) او زيات نه زيات موده يې لس شپې او لس ورځې وي
⇦ پدې اړه دليل د رسول الله ﷺ يو حديث دی چې الطبراني په خپل معجم او دار قطني په خپل سنن کې نقل کړی دی د مکحول نه روايت دی چې حضرت ابي امامة ❼ فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : أقل الحيض للجارية البكر والثيب ثلاثة ، وأكثر ما يكون عشرة أيام ، فإذا زاد فهي مستحاضة

ترجمه : د حيض لږ تر لږه زمانه د پېغلې او ميړوښې لپاره درې ده او زياته يې لس ورځې ده او که ددې نه هم زيات شي بيا دا ښځه مستحاضة ده .

په بل حديث کې محمد بن راشد له مکحول نه روايت کوي هغه وايي چې حضرت واثلة بن اسقع ❼ فرمايل چې رسول الله ﷺ فرمايل : أقل الحيض ثلاثة أيام ، وأكثره عشرة أيام

(د حيض کمه موده درې ورځې ده او زياته يې لس ورځې ده .)

## د حيض د وخت عادت

په اکثرو ښځو کې عادت شپږ او يا اوه ورځې وي رسول الله ﷺ پدې اړه حمنة بنت جحش ته فرمايل :

( تحيضي في علم الله ستة أيام أو سبعة، ثم اغتسلي وصلي أربعة وعشرين يوما أو ثلاثة وعشرين يوما كما تحيض النساء وكما يطهرن لميقات حيضهن وطهرهن (رواه الترمذي) .

ترجمه : حيض به درته راځي د الله ➢ په علم کې شپږ ورځې او يا اوه ورځې بيا غسل کوه او مونځ کوه څلور ويشت ورځې او يا اوه ويشت ورځې لکه نورې ښځې چې پاکيږي او حيض ورته راځي په خپل وخت ( د حيض په وخت کې ورته حيض راځي او د پاکي په وخت کې پاکيږي)

⇦ د حيض لپاره ضروري ده چې رحم له حمل نه خالي وي او کله چې رحم په حمل باندې مصروف شي نو بيا د حيض وينه بنده شي (السراج الوهاج) د اکثر تابعينو لکه حضرت سعيد بن المسيب ، حضرت عطاء او حضرت حسن رحمهم الله همدا رايه وه .

⇦ که د حيض په شپو کې د حيض د وينې څخه وروسته د يو څه وخت لپاره (مخکې ددې چې د

حیض موده یې پوره شي) نو ښځه پاکه شي او لږ وخت وروسته بیرته وینه راشي نو دا لږ پاکي یې هم د حیض په حکم کې ده . (عالمګیري)

⇦ پدې اړه امام ابي یوسف رحمه الله د امام ابي حنیفه رحمه الله نه روایت کړی دی هغه فرمایي هغه پاکي چې د دوو وینو په مینځ کې را ښکاره شي چې تر پنځلسو ورځو کمه وي نو دا هم د حیض په حکم کې ده عالمګیري وایي چې په همدې باندې وروستنیو علماوو فتوی ورکړیده او پدې باندې پوهېدل اسان دي .

⇦ په حیض کې د هرې ښځې خپل عادت وي او د هغه عادت مطابق ښځه فیصله کولی شي چې زه اوس پاکه یم او یا زه څه وخت پاکېږم لکن دا عادت تر لسو شپو چې زیات شي او یا تر دریو چې کم شي نو بیا حیض نه ګڼل کیږي دا استحاضة بیماري ده تفصیل یې راځي .



# د حیض احکام

## د حیض د وینې پېژندنه

ددې لپاره چې د حیض وینه له نورو وینو څخه ښه ښکاره شي علماوو ددې لپاره څلور نښې ښودلې دي .

### ١. رنګ

د حیض وینه په عادي حالاتو کې سره نه وي او که چېرته صافه سره وینه وه دا به د بیماري وینه وي او د حیض وینه به نه وي او که بیا هم چېرته د نورو دلائلو نه ښکاره شوه چې دا د حیض وینه ده بیا به د حیض وینه ګڼل کیږي.
په اکثر حالتونو کې د حیض وینه په رنګ کې تور والي ته مائله وي رسول الله ﷺ پدې اړه فرمايي :
دم الحيض أسود يعرف
یعني د حیض وینه توره وي پېژندل کیږي (زنانه یې پېژني .

٢. صفت يې

د حيض د وينې صفت دادى چې تېنګه وي او د بيماري (استحاضة) وينه نرى وي او دا د حيض او استحاضة په مينځ کې لوى فرق دى .

٣. بوى

دريمه علامه يې بد بوى دې چې د حيض د وينې سره ملګرى وي ځرنګه چې د حيض وينه له رحم څخه راوزي او هلته له مخکې نه جمع کيږي نو يو ډول بد بوى ورکوي او د استحاضة وينه پدې ډول نه وي هغه د رګ وينه وي او کله چې راوزي په هغه وخت کې تازه وي او بد بوى نه کوي .

٤. نه تېنګېدل

د حيض وينه چې په خپل اصلي شکل کې يو څه تېنګه وي ددې نه نوره نه تېنګيږي که وخت هم وربانديې تېر شي هماغه خپل حالت له لاسه نه ورکوي او نوره وينه چې په يو ځاى کې لږ پاتې شي نو بيا تېنګه شي .

# د حیض لپاره خاص احکام

## ۱. د عدت تېرېدل .

هغه ښځه چې طلاقه کړل شي او یا په شبه سره وطی شي او یا د کومې بلې وجې نه هغه عدت تېروي نو د هغې عدت په حیض سره اندازه کیږي (د عدت مکمل تفصیل ددې کتاب نه په وړاندې کتاب پنځمه برخه کې تېر شوی دی)

## ۲. استبراء (د رحم خالي والی معلومېدل)

په مختلفو مسئلو او په دیني مختلفو حالتونو کې مونږ ته ددې ضرورت وي چې یقیني کړو چې ښځه حامله نه ده نو چې کله ښځه حائضه شي نو دا ددې یقین دی چې رحم له حمل څخه خالي دی ځکه که حمل وي نو بیا حیض نه راځي.

۳. د ښځې بلوغ ښكاره كول.

هغه نوى جينى چې د حيض وينه ورته راشي نو دا ددې نښه ده چې دا جينۍ اوس پېغله شوه او بالغه شوه ددېنه وروسته به روژه خامخا نيسي او مونځ به خامخا كوي او په ټولو احكامو كې دا اوس بالغه ګڼل كيږي .

٤. د طلاق سني او بدعي په مينځ كې فرق

مخكې (ددې نه وړاندې په بل كتاب پنځمه برخه كې) تېر شول چې طلاق سني په طهر كې وي او طلاق بدعي په حيض كې وي نو چې كله حيض شروع شي كه ددې نه وروسته طلاق واقع شي نو هغه به طلاق بدعي وي.

٥. د روژې د خوراک روا والى

په هغه ځاى كې چې متصلې روژې نيول وي نو كه په هغه روژو كې زنانه ته حيض راشي نو اوس چې روژه وخوري نو هغه اتصال يې اوس هم په ځاى دى د حيض له امله چې كومې روژي خوري صرف دا به شماري او ددې مطابق به په آخر كې پسې زياتې كړي .

## نفاس

دا هغه وينه وي چې تر ماشوم وروسته راوزي او دا هم چې کله ودريږي نو غسل وربانديې واجب دی .

⇦ هغه ضائع شوی ماشوم چې اندامونه يې ښکاره وي چې کله پيدا شي نو ددې نه وروسته ښځه په نفاس کې ده (روژه به نه نيسي او مونځ به نه کوي) او که اندامونه يې ښکاره نه وي صرف د غوښې ټوټه وي بيا ښځه په نفاس کې نه ده (روژه به نيسي او مونځ به کوي) (التبيين)

⇦ نو چې کله داسې ماشوم پيدا شي چې د هغه اندامونه ، پوره نه وي نو د هغه د پيدا کېدلو نه وروسته که له مور څخه وينه ځي نو که ممکنه وه دا وينه به د حيض وينه حساب کړل شي او که د حيض وخت يې نه وو او يا د حيض تر شپو زياته شوه نو بيا يې حکم د استحاضه بيماري دی هر مانځه ته به تازه اودس کوي (تفصيل يې راځي) .

⇦ او که د ماشوم د پيدا کېدلو نه وړاندې وينه را ښکاره شوه بيا وروسته ماشوم پداسې حالت کې پيدا شو چې د هغه اندامونه ښکاره کېدل نو بيا دا حيض نشي کېدلی دا نفاس دی او که ماشوم داسې پيدا شو چې اندامونه يې ښکاره نه وو نو که بيا ممکنه وه او د حيض وينه

ګڼل کېدلی شوای نو دا به د حیض وینه وګڼل شي (النهایة)

⇦ که چېرته د ښځې په ګېډه کې ماشوم وو او د هغې ګېډه وشکول شوه او ماشوم ترېنه را ووېستل شو نو که د خاص اندام څخه یې وینه رانغله نو دا ښځه به په نفاس کې نه ګڼل کیږي د زخم نه چې راوزي دې وینې ته به د هغه وینې په نظر کتل کیږي لکه د چا چې کوم ځای زخمي شي اوپه مسلسله توګه ترینه وینه بهیږي او که د ګېډې نه یې د ماشوم له را وېستلو وروسته له خاص اندام څخه وینه راغله نو بیا ددې وینې له وتلو څخه وروسته دا مور په نفاس کې ګڼل کیږي (التبیین)

⇦ که چېرته په یو ځل دوه ماشومان پیدا کېدل او د دواړو د پیدا کېدلو په مینځ کې یو څه وخت وو نو نفاس به یې د اول ماشوم د پیدا کېدلو نه حسابیږي

⇦ د نفاس کمه موده د وینې ښکاره کېدل دي چې هرڅومره وي اګر که یو ساعت هم وي او زیاته موده یې څلوېښت ورځې او شپې ده (السراجیة)

⇦ که چېرته وینه تر څلوېښتو شپونه زیاته شوه نو څلوېښت شپې او ورځې یې نفاس دی که د څلوېښتو شپو او ورځو نه وړاندې پاکي راغله او یو څو شپې وروسته پسې بېرته وینه شروع

شوه نو دا پاکې ورځې هم نفاس حسابيږي (عالمګيري)

## شريک احکام

حيض لرونکې او نفاس لرونکې ښځې په آتو حکمونو کې سره شريکې دي :

١. ترڅو چې پاکې شوې نه وي مونځ ورڅخه ساقط دی اوس به يې هم نه کوي او چې کله پاکې شي قضايي راګرځول هم وربانده ې نشته حضرت عائشه رضی الله عنها فرمايي : کنا نؤمر بقضاء الصوم ولا نؤمر بقضاء الصلاة . (مونږ ته به امر کېدو چې د روژې قضايي راوړو او ددې امر به راته نه کېدو چې د مانځه قضايي راوړو)

⇦ کله چې ښځې ته وينه ښکاره شي هغه به مونځ پريږدي (التتارخانية)

⇦ په کوم وخت کې چې د ښځې حيض او يا نفاس شروع شي نو د همدې موجوده وخت مونځ يې چې نه وي کړی هم تر ېنه ساقط شو (الذخيرة)

⇦ که ښځې مانځه ته نيت وتړلو او پدې وخت کې يې د حيض بيماري شروع شوه نو دا مونځ به پريږدي که دا مونځ فرض وو قضايي راګرځول يې وربانده ې لازم نه دي او که دا مونځ نفل وو نو بيا چې کله پاکه شي بيا به ددې نفلي مانځه

قضايي راګرځوي (کوم يې چې شروع کړی وو او بيا پاتې شو) (عالمګيري)

٢. هغه ښځه چې په حيض او يا نفاس کې وي روژه به نه نيسي او کله چې پاکه شي نو بيا به يې قضايي راوړي لکه اوس لږ وړاندې چې يو حديث د مانځه په بحث کې تېر شو .

⇦ که چېرته يې په نفلي روژه کې شروع وکوله او بيا پکې حائضه شوه نو احتياطاً به يې قضايي راوړي (الظهيرية)

## ٣. جومات ته ننوتل نا روا دي.

هغه ښځه چې په حيض او يا نفاس کې وي هغې ته روا نه دي چې جومات ته ننوزي که د عبادت لپاره وي او که د جومات نه بل طرف ته د وتلو لپاره وي يعنې د جومات څخه د لارې کار اخلي د حضرت عائشې رضی الله عنها څخه روايت دی هغه فرمايي : قال رسول الله ﷺ صلى الله عليه وسلم: "فإني لا أحل المسجد لحائض ولا جنب" رسول الله ﷺ فرمايل بېشکه زه جومات نه حلالوم د حائضی او جنب لپاره (حلال نه ګڼم چې دوی د جومات ته ور ننوزي)

⇦ که چېرته سخت ضرورت شو او د حيض او نفاس لرونکې ښځې سره بله لاره نه وه يا له دښمن څخه ډار اويا بل ضرورت وو نو بيا جومات ته

ننوتلی شي او ترڅو چې همداسې ضرورت وي نو هلته پاتې کېدلی هم شي لکن د جومات د احترام د ساتلو لپاره به تیمم ووهي. (التتارخانیة)

- هغه ځای چې د جنازې اود اختر د مانځه لپاره تیار کړل شوی وي د هغه ځای حکم د جومات نه دی نو که د حیض او نفاس لرونکې ښځې هغه ځای ته ننوزي نا روا نه دی. (البحر الرائق)
- په حیض او نفاس کې ښځه که د قبر زیارت ته ځي او یا په هدېره باندې تېرېږي نو پروا یې نشته (السراجیة)

## ٤. طواف کول حرام دي

هغه ښځه چې په حیض او نفاس کې وي د هغو لپاره طواف کول هم حرام دي.

## ٥. تلاوت نا روا دی.

ترڅو چې ښځه په حیض یا نفاس کې وي نو هغوی تلاوت نشي کولی که پوره آیت وي او که نیم وي که چېرته یې د آیت کومه برخه لوستله او د تلاوت نیت یې نه وو د مثال په ډول د شکر په ډول یې ویل الحمد لله نو بیا پروا نشته یا یې د خوراک لپاره بسم الله ویله یا یې د بل کوم کار په شروع کې بسم الله وویله نو روا ده.

⇦ حائضی ته د تلاوت د نا روا والي په اړه يو حديث دی : عن نافع عن ابن عمر عن النبي صلی الله عليه وسلم قال لا تقرأ الحائض ولا الجنب شيئا من القرآن

ترجمه : د حضرت نافع ❼ نه روايت دی چې حضرت ابن عمر ❼ د رسول الله ☸ نه روايت کړی دی چې هغه فرمايل : حائضه او جنب به د قران کريم څخه هېڅ شی نه تلاوت کوي .

⇦ هغه وړوکی آيت چې په ژبه باندې راځي بغير ددېنه چې د تلاوت نيت يې وي هغه که ولولي نو پروا يې نشته لکه (لم يلد، ثم نظر) او داسې نور. (عالمګيري)

⇦ که استاذه وي او ماشومانو ته درس ورکوي نو د هغې چې حيض شروع شي نو هغې ته هم نه دي روا چې په روان ډول سره آيتونه ماشومانو ته درس کړي او که چېرته يې کوي نو يوه يوه کلمه به ورته ښيي او د هرې کلمې نه وروسته به وقف کوي (المحيط)

⇦ د دعا قنوت لوستل نا روا نه دي (التبيين)

⇦ هغه ښځه چې په حيض يا نفاس کې وي هغه دعا ګانې کولی شي ، د اذان ځواب ورکولی شي (السراجية)

٦. د قران کريم مس کول نا روا دي .

⇦ ترڅو چې په قران کريم باندې پوښ نه وي نو دهغه مس کول نه دي روا او دا پوښ به هم د کوم وچ شي لکه رخت داسې شی وي او د قران کريم څخه به جدا کېدونکی وي (الهداية)

⇦ د قران کريم د پاڼو هغه برخې چې په هغو باندې ليکل نه وي شوي دهغې مس کول هم نا روا دي (التبيين)

د حيض او نفاس په حالت کې که ښځه قران کريم ته لاس وروړي نو د هغه جامې سره چې دې آغوستي وي هم مس کول يې نا روا دي بلکه که ضرورت يې وو پداسې جامه به يې نيسي چې ددې په ځان پورې نه وي متصله (عالمګيري)

⇦ نور ديني کتابونه لکه د تفسير فقه او حديثو کتابونه مس کول هم مکروه دي او هغه که په خپله جامه ونيسي مکروه نه دي (التبيين)

⇦ بغير د قران کريم نه که په بله ټوټه، روپۍ يا بل شي باندې د قران کريم مکمل آيت ليکلی وي دهغې اخستل هم روا نه دي (الجوهرة النيرة)

⇦ که قران کريم ته لاس نه وروړي قران کريم خلاص پروت وي نو کتل ورته نا روا نه دي (الجوهرة النيرة)

⇦ که د حیض او نفاس ښځه داسې مضمون لیکي چې په هغې کې د قران کریم آیتونه وي اګر که دا یې تلاوت نه کوي بیا هم مکروه دی (عالمګیري)

۷. جماع ورسره نا روا ده .

هغه ښځې چې په حیض او یا نفاس کې وي د هغوی سره جماع کول نار وا دي .

د حیض په اړه الله ➢ فرمایي :

سورة البقرة آية ۲۲۲

يَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الْمَحِيْضِ ط قُلْ هُوَ اَذًى لا فَاعْتَزِلُوا النِّسَآءَ فِى الْمَحِيْضِ لا وَ لَا تَقْرَبُوْهُنَّ حَتّٰى يَطْهُرْنَ ج فَاِذَا تَطَهَّرْنَ فَاْتُوْهُنَّ مِنْ حَيْثُ اَمَرَكُمُ اللّٰهُ ط اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ التَّوَّابِيْنَ وَ يُحِبُّ الْمُتَطَهِّرِيْنَ (۲۲۲)

ترجمه : او دوی لتا څخه پوښتنه کوي د حیض په اړه ورته ووایه چې دا یو نجاست دی (خاوندانو! تاسې ) د حیض په شپو کې له خپلو مېرمنو څخه لرې شئ او مه ور نېږدې کېږئ تردې چې هغوی پاکې شي او کله چې پاکې شي نو په هغه طریقه ورته نېږدې شئ چې څنګه الله ➢ تاسې ته امر کړی وي الله ➢ هغه کسان خوښوي چې هغوی توبه ویستونکي وي او هغه کسان چې پاکي کونکي وي

⇦ هغه ښځه چې په حيض يا نفاس کې وي خاوند ورسره څملاستلی شي هغه مس کولی شي لکن صرف جماع ورسره کول نا روا دي (السراج الوهاج)

⇦ که چېرته خاوند ورسره جماع وکوله نو لويه ګناه ده توبه او استغفار به کوي او صدقه د ورکړي او توبه د وباسي . (محيط السرخسي)

## ۸. د پاکي نه وروسته غسل واجب دی

کله چې وينه بنده شي او ښځه پاکه شي نو غسل کول ورباندې واجب دي .

⇦ که د ښځې د حيض لس ورځې پوره شوې نو خاوند ورسره د غسل څخه وړاندې هم جماع کولی شي لکن غسل ته پرېښودل يې مستحب دي (محيط)

⇦ او که د لسو ورځو نه مخکې د حيض وينه بنده شوه ترڅو يې چې غسل نه وي کړی جماع کول ورسره نه دي روا او يا يې د پاکي نه وروسته د همدې وخت د مانځه وخت تېر شي (الزاهدي)

⇦ که د ښځې خپل عادت معلوم وو او د عادت د ورځو د پوره کېدلو څخه وړاندې يې وينه بنده شوه د خاوند نزديکت ورته مکروه دی ترڅو يې عادت پوره نشي او مونځ به کوي روژه به د احتياط له مخې نيسي (التبيين)

⇦ که ښځه تر خپل عادت څخه وړاندې پاکه شوه او يا يې عادت معلوم نه وو ښځه تر لسو ورځو

وړانـدې پـاکـه شوه نـو سم د لاسه بـه د مـوجوده وخت مـونـځ نـه کـوي بـلـکه د وخت تـر آخـر پـورې بـه صبـر وکـوي کـه بـيـا ويـنـه ښکـاره نـه شوه نـو د وخت پـه آخـر کې بـه مـونـځ وکـوي (الـزاهدي)



# استحاضة

⇦ که یې د حیض او یا د نفاس د شپو څخه زیاته وینه ولیده او یا د یو حیض پنځلس ورځې نه وې پوره شوې چې بیا یې وینه ولیده نو دا بیا حیض نه ګڼل کیږي دا استحاضة نومي بیماري ده .

⇦ همدارنګه که وینه راغله لکن تر دریو شپو نه وړاندې بېرته وچه شوه دا هم استحاظه نومي بیماري ده حیض ورته نشي ویل کېدلی همدارنګه که ډېره ماشومه دا وینه ووینې او یا ډېره زړه دا وینه ووینې نو د هغوی په حق کې هم دا فیصله نشي کېدلی چې دا به حیض وي بلکه استحاضة بیماري ده .

⇦ استحاضه داسې ده لکه د پوزې نه چې په مسلسله توګه وینه راشي نه مونځ منع کوي نه روژه او نه نور عبادتونه پدې اړه یو حدیث دی : عَنْ عُرْوَةَ ،عَنْ عَائِشَةَ ،قَالَتْ : جَاءَتْ فَاطِمَةُ بِنْتُ أَبِي حُبَيْشٍ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ ﷺ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ , فَقَالَتْ : إِنِّي أُسْتَحَاضُ فَلا أَطْهُرُ , أَفَأَدَعُ الصَّلاةَ ؟ فَقَالَ : " تَوَضَّئِي لِكُلِّ صَلاةٍ وَصَلِّي ، وَإِنْ قَطَرَ الدَّمُ عَلَى الْحَصِيرِ قَطْرًا .

ترجمه : د حضرت عروة ❼ نه روایت دی د حضرت عائشې رضی الله عنها څخه روایت کوي چې هغې

فرمایل حضرت فاطمة بنت ابي حبیش رسول ﷺ
☸ته راغله ورته يې وويل زه چې حائضه شم بیا نه پاکیږم نو زه به مونځ پریږدم؟ رسول ﷺ
☸ورته وویل : ته اودس کوه هر مانځه ته او مونځ کوه اګر که وینه درڅخه په پوزي باندې څاڅکی څاڅي.
⇦ که چیرته د ښځې نه خپل عادت هیر شو او وینه يې را روانه وه او داسې پکې حیرانه وه چې په هیڅ لوري يې فیصله نشوای کولی نو ددې په حق کې نه په پاکي او نه حیض باندې ټینګه فیصله کیدلی شي بلکه کوم چې احتیاطي اړخ وي په هغه به فیصله کیږي.



# مختلفې مسئلې

پدې برخه کې ځینې هغه پوښتنې چې د مشهورو علماوو څخه شوې دي او هغوی ورته ځوابونه ورکړي دي د نورو فقهي کتابونو څخه د څه زیادت کولو سره یې ستاسې مطالعې ته اېږدم .

## د حیض په شپو کې له شرم نه مونځ کول

**پوښتنه :** که کومه ښځه په حیض کې د شرم له امله مونځ وکوي مونځ یې کیږي؟

**ځواب :** ښځه چې ترڅو پورې په حیض کې وي مونځ یې نه صحیح کیږي رسول الله ﷺ فرمایي : **أليس إذا حاضت لم تصل ولم تصم ؟** (آیا ښځه داسې نه ده چې ددې کله حیض راشي نو دا نه مونځ کوي او نه روژه نیسي)

او پدې باندې یې بیا قضایي هم نشته حضرت عائشه رضی الله عنها فرمایي : **كنا نؤمر بقضاء الصوم ولا نؤمر بقضاء الصلاة.** (مونږ ته به امر کېدو چې د روژې قضایي راوړو او ددې امر به راته نه کېدو چې د مانځه قضایي راوړو) نو که ښځه د شرم او حیاء له امله مونځ کوي دا ناروا دی او ښځه به ترینه په هر ډول صورت کې

ځان ساتي بلکه ښځه چې پاکه هم شي ترڅو يې چې غسل نه وي کړی نو بيا هم مونځ ورته حرام دی او که پداسې وخت کې پاکه شي چې هلته اوبه نه وي نو د اوبو تر پيدا کولو به تيمم وهي.

او که کومې ښځې د شرم او حياء له امله مونځ وکولو نو توبه د وباسي او د الله ➢ نه د بښنه وغواړي .

## د حيض راوستلو يا بندولو لپاره دوا خوړل

**پوښتنه :** که کومې ښځې قصداً داسې څه وخوړل چې حيض راغلو نو د مانځه او روژې څه حکم دی او يا که چا داسې څه دوا وخوړه چې د هغې له امله حيض بند شو او د حيض وخت شوی وو او حيض رانغلو نو د مانځه او روژې څه حکم دی؟

**ځواب :** په هر صورت که حيض په خپله راشي او که ښځه يې ځان ته قصداً د کوم شي په خوراک سره راولي د حيض احکام به وربانديې جاري کيږي مونځ به نه کوي او روژه به نه نيسي او که د کومې دوا په واسطه يې حيض بند کړو نو بيا هم د حيض د نشت والي احکام وربانديې جاري کيږي روژه به نيسي مونځ به کوي . (ابن عثيمين رحمه الله)

# د حیض په شپو کې اودس

پوښتنه: کله چې ښځه په حیض کې وي او د کوم کار لپاره اودس کوي د مثال په توګه د ویده کېدو لپاره آیا دا اودس کول غوره خبره ده او په کار ده چې ویې کوي؟

ځواب: د حائضې د ښځې لپاره اودس کول هېڅ فایده نه کوي ځکه د حیض په موده کې د ښځې وینه مسلسله را روانه وي او د هغې اودس نه پاتې کیږي که په همدې صورت کې جنب د خوب یا خوراک لپاره اودس کوي نو دهغه اودس هغه ته فایده کوي او همدا اودس سنت هم دی حضرت عائشه رضی الله عنها فرمایي:

كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ جُنُبًا فَأَرَادَ أَنْ يَأْكُلَ أَوْ يَنَامَ تَوَضَّأَ وُضُوءَهُ لِلصَّلَاةِ) رواه مسلمِ

کله به چې رسول الله ﷺ په جنابت کې وو هغه به غوښتل چې خوراک وکوي

او یا ویده شي داسې اودس به یې وکولو لکه د مانځه لپاره به یې چې اودس کولو.

⇦ لکن د حائضې لپاره دا اودس فایده نه کوي (فتح الباري)

# په حیض کې د مانځه په وخت کې ذکر کول

پوښتنه: که د حیض په وخت کې ښځه د نورو مونځ کونکو په شکل اودس وکوي او د مانځه د وخت په اندازه کیني ذکر وکوي دا ښه خبره ده او که ضروري ده؟

ځواب : حضرت عبد الرزاق د ابن جریج نه روایت کړی دی هغه فرمایي ما حضرت عطاء رحمه الله ته وویل : أكانت الحائض تُؤمَر أن تتوضأ عند وقت كل صلاة ، ثم تجلس فَتُكَبِّر وتَذْكُر الله ساعة ؟ آیا هغه ښځه چې په حیض کې وي هغې ته به ویل کیږي چې اودس د وکوي تکبیر ته ووایي او د یو څه وخت لپاره د د الله ➢ ذکر وکوي؟ هغه راته وویل :

لم يبلغني في ذلك شيء ، وإن ذلك لَحَسَن

ماته پدې اړه کوم روایت نه دی را رسېدلی لکن دا ښه کار دی .

حضرت عبد البر رحمه الله فرمایي : من السلف مَن كان يَرَى للحائض ويأمرها أن تتوضأ عند وقت الصلاة ، وتذكر الله ، وتستقبل القبلة ذَاكِرَةً لله جالسة

په پخوانیو کې ځینې داسې خلک وو چې د حیض په حالت کې به یې ښځې ته ویل چې هغه د اودس

➢ ذکر د وکوي او د الله وکوي او قبلې ته د ې مخامخ کېني.
کله چې د مانځه وخت شي حائضې ښځې ته مستحب ده چې ا ودس وکوي او د مانځه په ځای کېني دومره وخت ذکر وکوي لکه څومره وخت چې به دې د پاکي په حالت کې مونځ کولو (السراجية)

## د حيض په شپو کې آغوستل شوې جامې

پوښتنه : هغه جامې چې ښځه يې د حيض په وخت کې واغوندي چې کله ښځه پاکه شي نو هغه جامه پاکه ده او که نجسه؟
ځواب : د حيض وينه چې په جامه باندې ولګيږي هغه مرداره ده مونځ ورسره نه کيږي د هغې وينځل فرض دي او پاتې شوه نوره جامه پاکه ده حضرت ابو هريره ❼ روايت کړی دی أن خولة بنت يسارقالت: يا رسول الله ☸ ليس لي إلا ثوب واحد وأنا أحيض فيه قال: فإذا طهرت فاغسلي موضع الدم ثم صلي فيه قالت: يا رسول الله ☸ إن لم يخرج أثره؟ قال: يكفيك الماء ولا يضرك أثره (رواه احمد و ابو داود)

ترجمه : خوله بنت یسار و فرمایل : یا رسول الله ﷺ زما صرف دا یوه جامه ده او زه په همدې کې حیض تېروم رسول الله ﷺ ورته و فرمایل : کله چې پاکه شوې نو هغه ځای ووینځه چې وینه وربانددې لګېدلې وي او بیا پکې مونځ وکوه دې وویل : یا رسول الله ﷺ که په وینځلو سره د هغه وینې اثر له جامې څخه ختم نشي؟ رسول الله ﷺ ورته وویل : چې په اوبو یې ووینځې دا د بس دی د اثر پاتې کېدل یې تاته څه ضرر نه رسوي .

د حضرت اسماء رضی الله عنها څخه روایت دی هغه فرمایي : **جَاءَتْ امْرَأَةٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ إِحْدَانَا يُصِيبُ ثَوْبَهَا مِنْ دَمِ الْحَيْضَةِ كَيْفَ تَصْنَعُ بِهِ قَالَ{ تَحُتُّهُ ثُمَّ تَقْرُصُهُ بِالْمَاءِ ثُمَّ تَنْضَحُهُ ثُمَّ تُصَلِّي فِيهِ} متفق عليه**

یوه ښځه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغله پوښتنه یې ورڅخه وکوله چې زمونږ په جامه باندې د حیض وینه ولګیږي نو بیا ورسره څه وکوو؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل ویې ګروه (په کوم شي سره) بیا یې په اوبو ووینځه بیا مونځ پکې وکوه .

## په روژه کې د سحر نه وړاندې پاکېدل

پوښتنه : په رمضان کې ښځه د سحر د راختلوڅخه لږ وړاندې پاکه شوه د روژې حکم څه دی؟

ځواب : کله چې ښځه د صبح صادق له راختلو نه یوه دقیقه وړاندې هم پاکه شوه د سبا روژه نیول وربباندې فرض دي لکن دا پاکي به رښتوني پاکي وي یعني د نفاس په حالت کې به ددې نه وړاندې څلویښت ورځې پوره شوې وي او یا به د حیض په صورت کې عادت او یا لس ورځې پوره شوې وي نو بیا که د سحر راختلو نه مخکې په داسې وخت کې پاکه شوه چې د یو تکبیر د ویلو وخت پاتې وو په هر صورت به ددې ورځې روژه نیسي او د سحر مونځ به هم کوي (اشرف علي تهانوي رحمه الله)



## په حیض کې د تلاوت سجده

**پوښتنه :** هغه ښځه چې په حیض کې وي او د تلاوت د سجدې آیت یې واورېدو سجده کول ورباندې واجب دي؟

**ځواب :** نه د حیض او نفاس ښځه که د سجدې لرونکی آیت واوري بلکه که یې ووایي هم په دې باندې سجده نه واجبیږي اوس هم ورباندې نه ده واجب او چې کله د حیض نه پاکه شي بیا هم ورباندې کول واجب نه دي او د جنابت په حالت کې که چا د تلاوت د سجدې آیت واورېدو نو سجده ورباندې واجبه ده لکن اوس به یې نه کوي بلکه چې کله یې غسل وکولو نو بیا به سجده وکوي.

## په حج کې حیض

**پوښتنه :** که د حج په سفر کې د ښځې حیض راشي هغه به څه کوي؟

**ځواب :** هغه ښځه چې د حج په سفر روانه وي او حیض ورته راشي نو د خپل ځان د صفایي فکر به کوي د سفر مخه یې نه نیسي او که د طواف په حالت کې ښځې ته حیض راغلو نو په هماغه ساعت به له جومات نه (د طواف له ځای نه راوزي) د حیض راتلو څخه وروسته په جومات کې د یوې ثانیې لپاره پاتې کېدل هم ګناه ده که پدې وخت

کې يې د طواف څلور شوطه (څلور ځله تاوېدل) پوره کړې وي نو اوس يې دا طواف پوره ګڼل کيږي د پاتې دريو شوطونو لپاره به فديه ورکړي او که تر څلورو يې کم شوطونه پوره کړي وو نو بيا يې طواف نه دی شوی .

پوښتنه: هغه ښځه چې په حيض يا نفاس کې وي د حج کوم کارونه نشي کولی؟

ځواب : کومه ښځه چې د حيض او يا نفاس په حالت کې حج کوي هغه د طواف نه بغير نور د حج ټول کارونه کولی شي په عرفات درېدل د جمرو ويشتل او داسې نورو ټولو کارونو لپاره پاکي شرط نه ده صرف طواف دی چې په جومات کې کيږي او د حيض او نفاس سره نشي کېدلی .



پوښتنه : په حج کې به حائضه او یا د نفاس خاونده ښځه د طوافونو سره څه کوي؟
ځواب : طوافونه درى دي

## ١. طواف قدوم

هغه وخت يې خلک کوي چې مکې مکرمې ته د اول ځل لپاره ور ورسيږي نو که ښځه په داسې حالت کې مکې ته ورسېده چې دا په حيض يا نفاس کې وه نو دا به صبر وکوي چې دا پاکه شي بيا به دا طواف وکوي او که دا پاکه نه وه د حج نور کارونه شروع شول نو دا به دا طواف پريږدي دېته معاف کړل شوى دى .

## ٢. طواف زيارت

دا طواف په لسم ، يولسم او دولسم تاريخ کيږي او دا فرض دى ددې د پرېښودلو هېڅ صورت نشته نو که پدې وخت کې ښځه په حيض يا نفاس کې وه نو دا طواف به نه کوي صبر به وکوي ترڅو پاکه شي او پدې وروسته کولو باندې په ښځه څه ګناه او حرج نشته .

## ٣. طواف وداع

دا هغه طواف وي چې کله حاجي له مکې مکرمې نه د خپل وطن په لور ستنيږي دا طواف کوي نو که پدې وخت کې ښځه په حيض يا نفاس کې وه نو د طواف وداع نه بغير به خپل وطن ته وګرځي . (مفتي عاشق الهي رحمه الله)

## که د ماشوم نه وروسته وينه رانشي

**پوښتنه :** که د ماشوم د پيداکېدلو څخه وروسته متصل وينه قطع شوه په هغه صورت کې د نفاس څه حکم دى؟

**ځواب :** د نفاس کمه اندازه هېڅ تعين شوې نه ده که فرضاً د ماشوم د پيدا کېدلو نه لږ ساعت وروسته او يا يوه ورځ وروسته هم وينه بنده شوه نو نفاس پاى ته ورسېدو ښځه به غسل وکوي او مونځ او روژه به شروع کړي او که په داسې حالت کې ورته د غسل کول له خطر نه خالي نه وو حتى چې په ګرمو ابو هم ممکن نه وو نو بيا د په تيمم سره ګذاره وکوي او چې کله ورته غسل له خطر نه خالي وو بيا به غسل وکوي .
او که چېرته د شلوېښتو شپو د پوره کېدلو نه وروسته هم وينه بنده نه شوه نو صرف تر شلوېښتو ورځو پورې ښځه له روژې او مانځه څخه منع ده د هغې نه وروسته به مونځ شروع کوي او روژه به نيسي او د روانې وينې حکم به د هغه زخم وي چې وينه يې نه دريږي يعني هر مانځه ته

به نوى اودس كوي او چې د بل مانځه وخت را داخليږي نو ددې اودس ماتيږي. (اشرف علي تهانوي رحمه الله)

## د غبرګو ماشومانو د پيدا کېدو نفاس

پوښتنه: کله چې جوړه ماشومان پيدا شي او د دواړو ماشومانو په مينځ کې لږ وخت تېر شي نو نفاس له کوم يو نه حسابيږي؟

ځواب: په هغه صورت کې چې دوه غبرګ (جوړه) ماشومان پيدا شي نفاس يې له اول نه حسابيږي او که د دوى په مينځ کې يو ساعت يوه ورځ او يا زيات فرق راغلو بلکه چې هروخت دوهم ماشوم پيدا شو تر شپږو مياشتو پورې ورته اعتبار نشته نفاس يې له اول نه حسابيږي .



## سپین

**پوښتنه**: کله د حیض او نفاس نه بغیر د زنانه د خاص اندام څخه نم وزي چې په سپین رنګ کې وي او په عامیانه ژبه کې ورته سپین ویل کیږي د هغې څه حکم دی؟

**ځواب**: ددې امله چې هرشی د زنانه له خاص اندام څخه را وزي هغه نجس وي نو دا سپین هم د همدې امله نجس دي او نجاست یې هم نجاست غلیظه دی صرف د درهم په اندازه (د ورغوي په اندازه) چې په جامه ولګیږي مونځ ورسره کیږي تردې چې زیات شي بیا مونځ ورسره نه کیږي په راوتلو یې صرف اودس ماتیږي غسل وربانديې نشته او که چیرته دا په مسلسله توګه روان وي نو ښځه به د هر مانځه لپاره نوی اودس کوي حکم به یې د هغه زخم شي د کوم نه چې په روانه توګه باندې وینه راوزي .

⇦ او که د کومې ښځې دا سپین داسې په مسلسله توګه را روان وي چې دیته د مانځه وخت هم نه ورکوي نو د همدې د روان والي سره سره دې خپل مونځ کوي او که چیرته یې دمه کوله کله راتلل او کله نه راتلل نو ښځه به انتظار کوي ترڅو چې هغه ودریږي پدې وخت کې به مونځ وکوي .

⇦ او که چېرته ددې لوندوالي رنګ تغیر شو نو که دا یې د حیض شپې وې نو د حیض له شپو څخه به حسابول کیږي او که د حیض وخت یې نه وو نو بیا استحاضة بیماري ده او که په همدې وخت کې دا لوند والی د حیض نه حساب کړل شي نو تر هغه وخته به حیض حسابیږي چې یا خو یې لس شپې پوره شي او یا خالص سپین والی را ښکاره شي.

⇦ او که چېرته لس ورځې تېرې شوې او بیا هم خالص سپین والی را ښکاره نه شو نو دا اوس استحاضة بیماري ده بیا به هم د هر مانځه لپاره اودس کوي او خپل مونځونه به روان ساتي او که د رمضان میاشت وه نو روژه به نیسي .

## په عملیات باندې د ماشوم پیدا کېدل

**پوښتنه :** کله کله په عملیاتو باندې ماشوم د ګېډې د شکولو نه سره را ویستل کیږي ددې د نفاس حکم څه دی؟

**ځواب :** که چېرته ماشوم په عملیات سره پیدا شي نو که د شرم ګاه له خوا وینه راووته نو د ښځې نفاس شروع شو همدا د وینې وتل یې نفاس دی ترڅو چې دا وینه روانه وي نو نفاس به یې

وي او که چېرته له شرمګاه نه وينه نه راوتله بلکه له زخم نه بهېدله نو د زخم د وينې حکم د زخم د وينې دی مونځ به کوي او هر مانځه ته به اودس کوي او که اوبو ورته تکليف ورکولو او يا خطرناک وو نو بيا تيمم وهلی شي .

## د حيض بندونکې دوا

**پوښتنه:** که د کومې ښځې واده نېږدې وي ، يا حج ته ځي ، يا د رمضان روژې پوره ساتل غواړي يا د کوم بل ديته ورته عذر له امله څه داسې دوا وخوري چې د هغې له امله حيض بند شي دا روا او که نا روا ده؟

**ځواب :** د ضرورت په وخت کې د حيض بندونکې دوا خوړل د ډېر مخکې نه رواج دی او ددې لپاره مختلفې طريقې دي په اوسني عصر کې يې ډېره استعمالېدونکې طريقه د يو ډول ګوليو خوراک دی او د فقهاوو له نظره هم د ضرورت په وخت کې د داسې دوا خوړل منع شوي نه دي سره ددې چې اکثر علماوو ورته څه غوره عمل نه دی ويلی لکن بيا هم ناروا ورته چا نه دي ويلي لکن که چېرته دا دوا داسې دوا وي چې بدن ته ضرر کوي نو بيا يې استعمال نا روا دی هغه ناروا والی يې ددې امله دی چې د هر ضرر ناک شی خوراک او استعمالول ناروا دي الله ➢ فرمايي :

سورة البقرة آية ١٩٥

وَأَنْفِقُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَلا تُلْقُوا بِأَيْدِيكُمْ إِلَى التَّهْلُكَةِ وَأَحْسِنُوا إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ

ترجمه : د الله ➢ په لاره کې مصرف وکوئ او په خپل لاس باندې ځان هلاکت ته مه اچوئ نيکي کوئ الله ➢ نيکي کونکي خوښوي .

په بل ځای کې الله ➢ فرمايي :

سورة النساء آية ٢٩

وَلاَ تَقْتُلُوْا أَنْفُسَكُمْ إِنَّ اللهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيْمًا

ترجمه : او خپل ځانونه مه قتل کوئ بېشکه الله په تاسې باندې مهربان دی .

⇦ او که چېرته څه پورته ياد کړل شوي ډول ضرورت نه وي بلکه يو ه ښځه غواړي چې همېشه بايد پاکه وي او ديته د حيض نه را ځي نو پدې نظريه باندې د حيض بندول ناروا دي ځکه دا د هغه عام فطرت مخالفت کول دي په کوم باندې چې الله ➢ ښځه پيدا کړېده ښځه چې څنګه الله ➢ پيدا کړېده بايد همداسې ورته حيض راشي او په همدې ډول پاکه شي او هره ښځه بايد د الله ➢ دا جوړښت ومني چې د حکمتونو او فايدو څخه ډک دی او که کومه ښځه د همېش لپاره خپل حيض بند کړي نو خطرناک او

ضرر ناک واقع کېدل یې ضروري دي او ددې املـه بـه د ښځې صحت خرابـیږي او اسلام تـول عمر لـه هغه شیانو څخه مونږ منع کوي د کوم لـه املـه چې زمونږ صحت خرابیږي .

⇦ ددې دوا پـه استعمال کې د خاوند اجازه ضروري ده کـه چېرتـه د حیض تـر وروسته کېدلو او یـا ځنډېدلو پورې د خاوند څه تعلق وو د مثال پـه توګه کـه چېرته ښځه د طلاق پـه عدت کې وه او کـه د ښځې عدت وروسته شي نـو د عدت وخت یې زیاتیږي نـو پدې وخت کې یې نفقه پـه خاوند ده او نـور احکام هم وربانـدې مرتب دي نـو کـه چېرتـه دا خپل حیض وروسته کول غواړي د خاوند اجازه پـه پکې وي او کنـه نـو بیا ناروا ده .

⇦ نکته : هغه ښځې چې دا ډول دوا استعمالوي هغوی بـاید ډېر احتیاط وکوي چې بـاید معیاري دوا ګانې استعمال کړي کومې چې د مسلمانو او معتمدو ډاکټرانو لـه لوري تصدیق شوې وي ځکه تجربې ثابته کړېده چې دا ډول دواګانې استعمالول پـه نظام حمل بانـدې اثر غورځوي .

# په استحاضه بیماري کې جماع

**پوښتنه :** هغه مېرمن چې په استحاضة باندې بیماره وي او هېڅ وخت یې وینه نه درېږي د هغې سره که خاوند جماع کول غواړي نو حکم یې څه دی؟

**ځواب :** لکه مخکې چې څو ځله تېر شول د استحاضة بیماري حکم لکه د هغه زخم دی چې همیشه ورڅخه وینه ځي نو د جماع په اړه یې هم همدا حکم دی که خاوند وغواړي د هغې سره د همدې وینې په حالت کې جماع کولی شي صرف په هغه ورځو کې به ورڅخه ځان ساتي چې د حیض د ورځو او شپو څخه شمارل کیږي په نورو شپو او ورځو کې په جماع کولو پروا نشته .

**پوښتنه:** که کومه مېرمن بیماره وي او په مسلسله توګه وینه ترینه ځي د مثال په ډول څلور میاشتې دا سلسله روانه وي دا به حیض څنګه معلوموي چې څه وخت دی؟

**ځواب :** پدې صورت کې به ښځه د خپل عادت مطابق (چې هرڅو ورځې وي) دومره ورځې د حیض څخه حساب کړي او که چېرته یې عادت نه وو معلوم نو هغه به د حیض زیاته نه زیاته اندازه (لس ورځې) حیض حساب کړي او پاتې نورې ورځې به د استحاضة څخه حساب کړي که رمضان وو روژه به نیسي او د

هر مانځه لپاره به اودس کوي (اشرف علي تهانوي رحمه الله)

## مونځ

## په مانځه کې د ښځې عورت

د اصيلې ښځې ټول بدن په مانځه کې عورت دی بغير د مخ لاسونو تر مړوندونو پورې که ددېنه بغير يې نور بدن ښکاره شي مونځ يې نه کيږي .

رسول الله ☸ فرمايي : المرأة عورة مستورة (ترمذي)

يعني ښځه پټ عورت دی (بايد پټ وساتل شي)

امام ابن قدامة رحمه الله فرمايي : وقال أبو حنيفة القدمان ليسا من العورة لأنهما يظهران غالباً فهما كالوجه (المغني)

ترجمه : امام ابو حنيفه رحمه الله فرمايي : قدمونه هم عورت نه دي ځکه دا هم غالباً ښکاره کيږي لکه مخ .

امام نووي رحمه الله فرمايي : وقال أبو حنيفة والثوري والمزني قدماها أيضاً ليسا بعورة ..

ترجمه : امام ابو حنيفه ، الثوري او المزني رحمهم الله فرمايي چې د ښځې قدمونه هم عورت نه دي .

⇦ لکن دا قدمونه تر هغه ځای پورې چې چېرته له ښکته خوانه لنګی شروع کیږي پداسې ډول چې لنګی به په مکمله توګه پټ وي او قدم که ښکاره شي مونځ نه ماتوي .

⇦ په مانځه کې د ښځې عورت پټول دا د مانځه د صحت لپاره شرط دی ترڅو یې چې ټول ځان پټ نه وي نو مونځ یې نه صحیح کیږي ددې عورت پټولو لپاره د کوم اجنبي کس وجود ضروري نه دی بلکه که ښځه یوازې هم په تیاره کوټه کې هم مونځ کوي نو خپل عورت به پټ ساتي او که ښځه یوازې مونځ کوي او په مانځه کې یې وېښته ښکاره کیږي مونځ یې نه کیږي په همدې ډول که د مخ لاس او پښو نه بغیر یې کوم اندام ښکاره کېدو .

⇦ که چېرته ښځې مونځ وکولو او بیا یې ولیدل چې نیم لنګی یې لوڅ وو نو مونځ به را ګرځوي او که ددې څخه کم لوڅ وو بیا یې را ګرځول وربانديې نشته (الهدایة)

⇦ که ښځه په داسې ځای کې مونځ کوي چې اجنبي سړی یې هلته ویني نو بیا یې مخ لاس او قدمونه ښکاره کول هم ناروا دي بیا به د پردې د قانون له مخې ټول ځان پټوي .

⇦ هغه ماشومه چې بالغه شوې نه وي په مانځه ولاړه وي که یې په مانځه کې غاړه یا وېښته ښکاره شي نو مونځ یې کیږي .

⇦ په مانځه کې ښځه که زيورات اچوي نو مونځ نه خرابوي يعني د زيوراتو سره بېشکه مونځ کيږي .

## د جمع مونځ

⇦ صرف ښځې که مونځ په جمع کوي او ښځه يې امامت کوي نو دا مکروه دی لکن بيا يې هم چې کوي نو امام به يې په مينځ کې دريږي.

⇦ د ښځو لپاره تر داسې جمع نه چې ښځه يې امامت کوي يوازې مونځ کول غوره دي.

⇦ د ښځو امامت د ښځو لپاره صرف په جنازه کې مکروه نه دی .

⇦ که دوه کسان وو او يا تر دوه زيات وو بيا به په امام پسې شا ته دريږي .

⇦ که يو نارينه وو او يوه ښځه وه نو نارينه به يې ښي طرف ته ودريږي او ښځه به په امام پسې شا ته ودريږي .

⇦ که چېرته دوه سړي او يوه ښځه وه نو دوه سړي به پسې شا ته ودريږي او هغه ښځه به د دوو کسانو شاته په دوهم صف کې ودريږي .

## د سړي سره په څنګ کې په جمع کې دريدل

⇦ که په مانځه کې ښځه د کوم سړي سره په خوا کې ودریږي نو د سړي مونځ ماتیږي ددې مانځه د ماتېدلو لپاره یو څو شرطونه دي:

الف : دا ښځه به لویه وي که ما شومه وه نو مونځ نه فاسدیږي .

ب : مونځ به د رکوع او سجدې واله مونځ وي (د جنازې په مانځه کې که ښځه د چا په څنګ کې ودریږي مونځ نه فاسدوي) .

ج : دواړه به په یوه مانځه کې شریکان وي (په یوه امام پسې به یې اقتداء کړې وي)

د : دواړه په په یوه ځای کې ولاړ وي که سړی په لوړه ولاړ او ښځه په ښکته ځای کې وه نو مونځ نه فاسدیږي.

ه : د دواړو په مینځ کې به په کوم شي سره پرده نه وي راغلې که په مینځ کې یې د جومات ستنه یا بل شی پرده وو بیا مونځ نه فاسدیږي.

و: دا ښځه به داسې څوک وي چې مونځ یې صحیح وي د مثال په ډول که لېونی د چا سره په مانځه کې څنګ ته ودرېده نو د سړي مونځ نه فاسدیږي .

ز : چې په یوه رکن کې سره څنګ په څنګ وي نو مونځ فاسدیږي یعني که یوه ښځه راغله قیام یې د یو کس په خوا کې وکولو ، رکوع یې د بل کس په خوا کې او سجده یې د بل کس په خوا کې وکوله نو د ټولو کسانو مونځونه یې فاسد کړل.

⇦ ښځه که د سړیو په مینځ کې په مانځه ودریږي نو د دریو کسانو مونځ فاسدوي هغه چې ښي طرف ته ، چپ طرف ته او شا ته پسې ولاړ وي .

⇦ که دوه ښځې څنګ په څنګ په مانځه کې د سړیو په مینځ کې و دریدې نود څلورو کسانو مونځونه فاسدوي هغه چې د دوی ښي طرف ته وي او هغه چې چپ طرف ته وي او دوه هغه کسان چې په ورپسې صف کې په دوی پسې ولاړ وي. (التتارخانیة)

## جومات ته تلل

⇦ کله چې په جومات کې داسې سهولت وي چې هلته که ښځې مانځه ته ورشي نو د هغوی ستر او پرده نه خرابیږي نو ښځې کولی شي هغه جومات ته مانځه ته لاړه شي لکن د ښځې مونځ په داسې ځای کې غوره دی چې ترڅو پورې ممکن وي چې پټ ځای وي که په کور کې وي هم .

## په سفر کې د ښځې مونځ

⇦ کومه ښځه چې د خاوند سره په سفر روانه وي نو ددې مسافر کېدل او مقیم کېدل تر خاوند پورې مربوط دي چېرته یې چې خاوند د ا قامت نیت وکولو نو دا به هم د مقیم (پوره) مونځ کوي او که چېرته یې خاوند د اقامت نیت نه وو کړی نو دا به هم د مسافر مونځ کوي .

## روژه

مخکې تېر شول هغه ښځه چې په حیض او یا نفاس کې وي په هغې باندې روژه نیول اوس فرض نه دي اوس به یې نه نیسي او قضائي به یې بیا راګرځوي .

⇦ هغه ښځه چې حامله وي په ماشوم باندې ډاریږي او یا پدې ډاریږي که دا روژه ونیسي ددې د مرګ او یا بېمار کېدو خطر وي نو هغه کولی شي په رمضان کې روژه وخوري او بیا به یې قضایي را ګرځوي.

⇦ هغه ښځه چې ماشوم ته شودې ورکوي او دا پدې ډاریږي که روژه ونیسي نو ددې په شودو کې کمی راځي او د ماشوم د هلاکت ویره را پیدا کیږي نو دا ښځه کولی شي روژه وخوري او بیا به یې قضایي را ګرځوي لکن دا په هغه صورت

کې چې ددې څخه بغیر بل څوک دې ماشوم ته د شودو ورکولو لپاره نه پیدا کیږي او که بل څوک پیدا کیږي هغه له دې څخه په صحت کې ښه وي نو هغه به شودې ورکړي دا به روژه نه خوري .

## زکات

⇦ د زکات په اړه مونږ ددې سلسلې په دریم کتاب کې تفصیل کړی دی لکن یوه مسئله دلته ددې امله تکرار کوم چې زما په نظر هغه مهمه ده او زمونږ د معاشرې د ښځو هغې ته زیات ضرورت دی هغه داده چې ځینې خلک وایي په هغه سرو او سپینو زرو کې چې ښځه یې استعمالوي زکات نشته لکن صحیح خبره داده چې په هغې کې زکات شته .

⇦ په هغه زیوراتو کې چې زنانه یې آغوندي او استعمالوي یې هم زکات فرض دی که د زکات د نصاب سره برابر شي او یا ترینه زیات شي په هر کال کې به یې څلویښتمه برخه یا دهغې مساوي پیسې په زکات کې ورکوي او که د نصاب نه کم شي نو بیا وربانديې زکات نشته .

پدې اړه یو څو دلیلونو ته ستاسې فام را ګرځوم چې هغه دا ثابتوي چې د زنانه په زیوراتو کې زکات شته .

لمړی دلیل :

الله ① فرمايي:
سورت التوبة آية ٣٤- ٣٥
وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلَا يُنْفِقُونَهَا فِي سَبِيلِ اللهِ فَبَشِّرْهُمْ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ* يَوْمَ يُحْمَى عَلَيْهَا فِي نَارِ جَهَنَّمَ فَتُكْوَى بِهَا جِبَاهُهُمْ وَجُنُوبُهُمْ وَظُهُورُهُمْ هَذَا مَا كَنَزْتُمْ لِأَنْفُسِكُمْ فَذُوقُوا مَا كُنْتُمْ تَكْنِزُونَ

ترجمه : او هغه کسان چې خزانه کوي سره زر او سپين زر او نه لګوي هغه په لاره د الله ① کې (د دين د ترقي لپاره) نو زيری ورکړه دوی ته په عذاب دردناک سره په هغې ورځې چې سختې سرې به کړل شي دغه خزانې په اور د جهنم (دوزخ) کې نو داغلی به شي په هغه سره وچولي (تندي) د دوی او اړخونه د دوی او شاګانې د دوی او ويل کيږي به ورته دا هغه شی دي چې خزانه کړي وو تاسې د پاره د نفسونو (ځانونو) خپلو نو وڅکئ تاسې (خوند د سزا د) هغه (مال) چې تاسې به خزانه کاوه په دنيا کې.

په پورتني آيت کې د سپينو اوسرو زرو تقسيم نه دی شوی بلکه په عامه توګه هر سپين او سره زر ياد کړل شوي نو پدې کې هغه سره او سپين زر هم

داخل دي چې زنانه يې د زيور په توګه استعمالوي .

## دوهم دليل:

د صحيح مسلم په حديث کې رسول الله ﷺ فرمايي :
هغه څوک چې د سرو او سپينو زرو مالک وي په د نيا کې د الله ① حق (زکات) ترېنه ورنه کړي نو په قيامت کې به الله ① ورته تختې ترې جوړې کړي او د دوزخ په اور به يې ګرمې کړي بيا به د مالک څنګ ، تندی او شا وربانديې داغ کړي چې کله دا تختې يخې شي بيا به ورته ګرمې کړل شي او په هغه ورځ چې اندازه يې پنځوس زره کاله وي همدا کار به ورسره کيږي تردې چې حساب ختم شي څوک چې جهنم ته د تلو وي هغوی به جهنم ته او څوک چې جنت ته د تلو وي هغوی به جنت ته لاړ شي.
ددې حديث په تفسير کې اجماع ده چې هر سره او هر سپين مراد دي ځکه رسول الله ﷺ چې کله هغه کسانو ته وعيد ورکول چې زکات نه ورکوي نو د سرو او سپينو زرو په مينځ کې يې تقسيم نه دی کړی.

## دريم دليل :

د ابي داود، النسائي، احمد او ترمذي په حديث کې دي :

د حضرت عبد الله بن عمر بن العاص ❼ نه روايت دى رسول الله ♈ ته يوه ښځه راغله چې يوه لور يې ورسره وه او د لور په لاس کې يې دوې د سرو زرو سختې کړې وې رسول الله ♈ ورته وويل ته ددې زکات ورکوې؟ هغې مبارکې ورته وويل : نه رسول الله ♈ ورته وفرمايل چې ته دا خوښوي چې الله ➢ ددې په ځاى درته د اور دوه کړې د قيامت په ورځ درته واچوي؟ حضرت عمرو ابن العاص ❼ فرمايي بيا هغې مبارکې هغه دواړه کړې رسول الله ♈ ته ور واچولې او ورته يې وويل دا د الله ① او دهغه د رسول وي .

پدې حديث کې هغې ښځې ته سخت وعيد ورکړل شوى دى چې دا ددې زکات نه ورکوي او دا هغه څه وو چې د ښځې د زيور برخه وه .

## څلروم دليل :

د ابي داود ، دار قطني، او بيهقي په حديث کې د عبد الله بن شداد بن الهاد نه روايت دى هغه فرمايي مونږ ته حضرت عائشې رضى الله عنها و فرمايل يوه ورځ رسول الله ♈ زما کوټې ته را ننوتلو زما په لاس کې يې دوې ګوتمې ولېدې چې د

سپینو زرو وې را څخه یې پوښتنه وکوله : عائشې دا څه شی دي؟ ما ورته وویل دا ما جوړې کړې دي ستاسې لپاره پرې ځان ښائسته کوم . رسول الله ﷺ راڅخه پوښتنه وکوله : ته ددې زکات ورکوې؟ ما ورته وویل نه .. بیا رسول الله ﷺ را ته وویل : ستا د اور نه همدا برخه بس ده .

پدې حدیث کې رسول الله ﷺ حضرت عائشې رضی الله عنها ته د هغې د دوو ګوتمو د زکات د نه ورکولو په اړه وعید ورکړی دی .

د صحابه کرامو عمل هم پدې وو چې هغوی به د زنانه د زیوراتو نه زکات ورکول لازم ګڼل یو څو مثالونه یې ستاسې په وړاندې ایږدم .

## لمړی مثال :

حضرت عمر بن الخطاب ❼ حضرت موسی الاشعري ❼ ته په یو لیک کې لیکلي وو :

(أن مرَّ من قبلك من نساء المسلمین أن یصدقن من حلیهنَّ)

(البیهقي في سنن ا لکبری)

ترجمه : د مسلمانانو ښځو ته حکم وکوه چې هغوی د خپلو زیوراتو زکات ورکړي.

دوهم مثال :

د عبد الله ابن عباس نه نقل شوي دي چې هغه د زنانه وو په زيوراتو کې زکات لازم کړی وو. ( ذکره ابن الحجر في التلخيص الجبير)

دريم مثال :

د حضرت عبد الله بن مسعود ❼ نه يې خپلې مېرمن د خپلو زيوراتو په هکله پوښتنه وکوله ده ورته وفرمايل :

(إذا بلغ مائتي درهم ففيه الزکاة)

(مجمع الزوائد، السنن الکبری)

يعني چې دوو سوو درهمو ته ورسيږي بيا پکې زکات شته .

## ځلرم مثال :

د حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص ❼ نه نقل شوي دي چې هغه به د خپلې مېرمن او خپلو لورانو د زیوراتو نه زکات ورکولو . (السنن الکبری، الدار قطني)

## پنځم مثال :

د حضرت ام المومنین عائشې رضی اللّٰہ تعالی عنها څخه نقل شوي دي هغه مبارکه فرمایي :
((لا بأس بلبس الحلي إذا أعطيت زكاته))
یعني چې د زیوراتو زکات ورکوې بیا یې په استعمال څه پروا نشته . (البیهقي ، الدار قطني)



# پــرده

اسلام د ښځې د حفــاظت لــپاره په هغې بــانــدې لازم کړي دي چې خپلــه پــرده وســاتــي ښځې تــه روا نــه دي چې د هرچا پــه وړانــدې خپلــه پــرده مــاتــه کړي او خپل زيــنت ښکاره کړي پــدې مــوضوع بــانــدې يــو څه تــفصيل ستــاسې پــه وړانــدې د قــران کريــم د آيــتونــو ، حديــثونــو او فقــهي کتــابــونــو څخه د را اخستل شويــو مــعلــومــاتــو پــه رڼــا کې ايــږدم چې پــه ډېــرو صورتــونــو کې لــه داسې خلــکو نــه هم غلطي کيــږي چې هغوی پــه ځانــونــو د پــردې الــتزام کوي لــکن د نــه پــوهې لــه املــه د هغوی زنــانــه لــه داسې چا سره کيــني او پــاځيــږي چې د شريــعت لــه نــگاه نــه ورسره جائــز نــه وي پــدې بــحث کې بــه زه کوښښ وکــوم چې دا خبــرې لــه دلــيلــونــو سره ښکاره کړم همدارنــگه د رسول الله ﷺ پــه وخت کې د پــردې څه حيــثيــت وو مــثالــونــه بــه يــې ستــاسې مطالــعې تــه انــشاء الله ړالــئ کړم .



# د پردې مخالفت څوک کوي؟

هغه کسان چې د پردې مخالفت کوي او یا یې ساتنه نه کوي په درې ډوله وي .

## ۱. دیندار نه وي

دا هغه ډول خلک وي چې اسلامي قوانین هغوی ته دومره د قدر وړ نه ښکاره کیږي چې په خپل ژوند کې یې عملي کړي او د هغوی په سترګو کې د کفارو رواجونه او د هغوی عادتونه ناست وي نو هغه ډول جامې او هغه ډول ناسته ولاړه او له هغه ډول خلکو سره کېناستل پاڅېدل خوښوي چې په کفري جامعه کې هغوی ته ښه ویل کیږي دا ټول هغه خلک وي چې کله زنانه خپلې جامې لنډوي او ځان د خلکو په مخ کې ښکاره کوي هغه ورته ترقي ښکاره کیږي او که کومه ښځه په حجاب او پرده کې له کور نه وزي دا ورته شاته پاتې کېدل ښکاره کیږي نو ددې امله هغوی اکثر په حجاب او حجاب استعمالوونکو ښځو پورې مسخرې کوي او د ښځې لپاره پرده د شاته پاتې کېدو یوه نښه بولي دا هغه کسان دي چې شیطان یې په دماغونو باندې خپل سحر چلولی دی الله ➢ د ورته هدایت وکوي .

## ۲. نه پوهیږي

دوهم ډول هغه خلک دي چې هغوی د پردې ساتنه کوي لکن په ځينو خبرو باندې نه پوهيږي او يا په ځينو خبرو کې د اولې ډلې تر تاثير لاندې راغلي وي او د دين څخه لرې خلکو سره د دوی د ناستې ولاړې له امله د هغوی ذهن داسې جوړ شوی وي چې په اسلام کې د پردې له امله دومره سخت قوانين نشته (لوی جهالت يې دا وي چې د اسلام قانون ورته سخت ښکاره کيږي) د داسې خلکو لپاره زما اميد دی چې زما دا بحث ډېر فايده من واقع شي .

## ۳. رواج نشي پريښودلی

دريم ډول هغه خلک دي چې هغوی ځانونه مسلمان هم ګڼي او د دين له مخې ورته ضروري هم ښکاره کيږي چې پرده وساتي لکن د رواج مخالفت نشي کولی او د رواج له مخې دا ورته مشکله ښکاره کيږي چې خپله ښځه او يا خپله لوري يا خور د هغې د تره له زوی سره کېناستلو ته نه پريږدي داسې خلک خو چې لږ هم خپل ګرېوان ته د عبرت سترګې ښکته کړي بايد له خپل ځان څخه په خپله بې غيرتي و شرميږي او دا به د بي غيرتي آخري حد وي چې ته د خپل غيرت ، شريعت او ننګ څخه ددې لپاره تېرېږي چې رواج خراب نشي ...

## د پردې فرض کېدل

د لمړي ځل لپاره د هجرت په پنځم کال د حجاب آیت داسې نازل شو چې مسلمانانو ته حکم وشو چې د رسول الله ﷺ کور ته به نه ننوزي او که د هغوی له بیبیانو څخه څه شی په کار کېدل نو د پردې تر شا به یې ترې وغواړي الله ➢ و فرمایل :

سورة احزاب آیة ۵۳

وَ اِذَا سَاَلۡتُمُوۡهُنَّ مَتَاعًا فَسۡـَٔلُوۡهُنَّ مِنۡ وَّرَآءِ حِجَابٍ ؕ ذٰلِكُمۡ اَطۡهَرُ لِقُلُوۡبِكُمۡ وَ قُلُوۡبِهِنَّ ؕ

ترجمه : او که تاسې د هغوی نه کوم شی غوښتل نو د پردې له بهر نه یې د ترې وغواړي دا ستاسې او د هغوی د زړونو لپاره د پاکي خبره ده .

پدې آیت کې د لمړي ځل لپاره د پردې حکم نازل شو د حضرت عمر رضی الله عنه له مناقبو څخه یو دا هم دی چې دده رایه د وحی سره برابره شوه حضرت عمر ❼ رسول الله ﷺ ته وویل : ماته دا ښه نه ښکاره کیږي چې ستاسې کور ته د هرڅوک ننوزي که لوی وي او که وړوکی نو که تاسې خپلو بیبیانو ته حکم وکوئ چې هغوی پرده وکوي دا به غوره خبره وي بیا د پردې آیت نازل شو (متفق علیه)

حضرت انس ابن مالک ❼ فرمایي کله چې رسول الله ﷺ د حضرت زینب (بنت جحش) سره نکاح وکوله

او د ولیمې د خوراک لپاره د رسول الله ﷺ ځای ته خلک راغلل هلته خلکو خوراک وکولو ځینې خلک د رسول الله ﷺ د پاڅېدلو سره سم پاڅېدل او لاړل لکن دری کسان هلته په خبرو کې آخته شول او رسول الله ﷺ چې د ځوانمردي او غیرت وربانديې بې ساري غلبه وه نو يې نشوای کولی چې په خوله باندې هغوی ته ووايي چې تاسې اوس پاڅېږئ او لاړ شئ نو رسول الله ﷺ به ووتلو او بېرته به راغلو هغه کسان به بيا هم ناست وو او خبرې به يې کولې رسول الله ﷺ به بيا ترېنه لاړو لږ وروسته هغه خلک پاڅېدل زه ورغلم رسول الله ﷺته مې دا خبر ورکړو چې هغه خلک لاړل رسول الله ﷺ راغلو تردې چې خپل کور ته ننوتلو ما هم ورسره ننوتل غوښتل رسول الله ﷺ ودرېدو زما او د کور په مینځ کې يې يوه پرده ځوړنده کړه او پدې وخت کې د پردې آيت (پورتنی آيت) نازل شو (بخاري)

پورتنی آيت اګر که په اصل کې د امهات المومنين په حق کې نازل شوی دی لکن ددې حکم د عامو مسلمانانو مېرمنو ته هم دی .

په پورتني آيت کې په عامه توګه حکم شوی چې د ښځو نه که کوم شی غوښتل کیږي نو د پردې نه بهر به ترېنه غوښتل کیږي په ورپسې آيت کې د

هغه کسانو تفصیل الله ➢ کوي چې هغوی تردې حکم لاندې داخل نه دي الله ➢ فرمايي :

سورة احزاب آية ٥٥

لَا جُنَاحَ عَلَيۡهِنَّ فِيۡ اٰبَآئِهِنَّ وَ لَاۤ اَبۡنَآئِهِنَّ وَ لَاۤ اِخۡوَانِهِنَّ وَ لَاۤ اَبۡنَآءِ اِخۡوَانِهِنَّ وَ لَاۤ اَبۡنَآءِ اَخَوٰتِهِنَّ وَ لَا نِسَآئِهِنَّ وَ لَا مَا مَلَكَتۡ اَيۡمَانُهُنَّ ۚ وَ اتَّقِيۡنَ اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلٰى كُلِّ شَيۡءٍ شَهِيۡدًا (٥٥)

ترجمه :: په دوی باندې ګناه نشته د دوی په پلرونو ، د دوی په زامنو، د دوی په ورونو، د دوی په وریرونو، د دوی په خوریونو ، د دوی په خپلو ښځو او په هغه کسانو کې چې دوی يې مالکانې دي.

پدې آيت کې هغه کسان ښکاره شول چې د دوی سره که ښځه په لوڅ مخ مخامخ کیږي نو پروا يې نشته (پوره تفصیل يې لږ وروسته راځي) پدې آيت پسې بیا وروسته ا لله مسلمانانو ښځو ته طريقه ښيي او فرمايي :

سورة احزاب آية ٥٩

يٰۤاَيُّهَا النَّبِيُّ قُلۡ لِّاَزۡوَاجِكَ وَ بَنٰتِكَ وَ نِسَآءِ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ يُدۡنِيۡنَ عَلَيۡهِنَّ مِنۡ جَلَابِيۡبِهِنَّ ؕ ذٰلِكَ اَدۡنٰۤى اَنۡ يُّعۡرَفۡنَ فَلَا يُؤۡذَيۡنَ ؕ وَ كَانَ اللّٰهُ غَفُوۡرًا رَّحِيۡمًا (٥٩)

ترجمه : ای نبي ووایه ښځو ته دې او لوڼو (لورانو) ته دې او ښځو د (نورو) مؤمنانو ته

چې خپاره د کړي په خپلو ټولو ځانونو خپلو له ټکريو (ځادرونو) خپلو څخه دغه (پټول د بدن) نيږدې دي دې ته چې و به پېژندلې شي دوی (چې اصيلې دې) پس ضرر به ونشي رسولی دوی ته (د وينزو په گمان) او دی الله ➢ ښه بښونکی (د خطاگانو) ډېر رحم کونکی .

حضرت شاه ولی الله صاحب ددې آيت په تفسير کې فرمايي : چې کله ښځه په حجاب کې وي نو هغه به پېژندل کيږي چې دا وينزه نه ده بلکه د غيرت نه ډکه اصيله بي بي ده، د ننگ او ناموس مېړمن ده ، بد بخته او بې عزته نه ده ترڅو بد عمله او بد اخلاقه خلک وربانديې غلط نشي او دېته خپل ککړ لاس ونه غزوي الله ➢ پدې آيت کې د مخ پټول (برقه) د ښځې لپاره د عزت او اصيل والي نښه کړه نو قضاوت لوستونکی پخپله کولی شي چې که کومه ښځه دا نښه له ځان سره ونلري نو بيا.....؟

دلته د پردې په اړه څو لویې خبرې دي:

## لمړی خبره

## محرم څوک دی؟

(له چا څخه به پرده کوي او له چا څخه به یې نه کوي)

د محرم په تعریف کې د قران کریم د آیتونو او د فقهي کتابونو په رڼا کې وضاحت کول غواړم

پدې اړه الله ➢ فرمايي :

سورة النور آية ٣١

وَ قُلْ لِّلْمُؤْمِنٰتِ يَغْضُضْنَ مِنْ اَبْصَارِهِنَّ وَ يَحْفَظْنَ فُرُوْجَهُنَّ وَ لَا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ اِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَ لْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلٰى جُيُوْبِهِنَّ ۪ وَ لَا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ اِلَّا لِبُعُوْلَتِهِنَّ اَوْ اٰبَآئِهِنَّ اَوْ اٰبَاۤءِ بُعُوْلَتِهِنَّ اَوْ اَبْنَآئِهِنَّ اَوْ اَبْنَاۤءِ بُعُوْلَتِهِنَّ اَوْ اِخْوَانِهِنَّ اَوْ بَنِيْۤ اِخْوَانِهِنَّ اَوْ بَنِيْۤ اَخَوٰتِهِنَّ اَوْ نِسَآئِهِنَّ اَوْ مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُنَّ اَوِ التّٰبِعِيْنَ غَيْرِ اُولِى الْاِرْبَةِ مِنَ الرِّجَالِ اَوِ الطِّفْلِ الَّذِيْنَ لَمْ يَظْهَرُوْا عَلٰى عَوْرٰتِ النِّسَآءِ ۪ وَ لَا يَضْرِبْنَ بِاَرْجُلِهِنَّ لِيُعْلَمَ مَا يُخْفِيْنَ مِنْ زِيْنَتِهِنَّ ؕ وَ تُوْبُوْۤا اِلَى اللّٰهِ جَمِيْعًا اَيُّهَ الْمُؤْمِنُوْنَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ (٣١)

ترجمه : او ووایه ای محمده ایمان لرونکو ښځو ته چې پټې دې کړي له نا محرمو څخه سترګې خپلې او د خپلو شرمګاهونو حفاظت د وکوي او نه د ښکاره کوي خپل ښائست (او ځای د ښائست) خپل مګر هغه چې ښکاریږي له دغه (زینت څخه په وخت د کسب او کار کې) او ښایي چې وا د چوي ټکري خپل په ګریوانونو خپلو (چې ګریوان یې ښکاره نشي) او نه د ښکاره کوي زینت (او ځای د زینت) خپل (هېچا ته) مګر میړونو خپلو ته یا پلرونو خپلو ته یا د میړونو پلرونو (خسرونو) ته یا زامنو خپلو ته یا د خپلو میړونو زامنو ته یا ورونو خپلو ته یا وریرونو خپلو ته یا خوریونو خپلو ته او یا خپلو ښځو ته او یا هغه کسانو ته چې دوی یې مالکانې شوې وي یا خپلو هغه تابعانو ته چې ښځو ته د هغوی حاجت نه وي او یا هغه هلکانو ته چې هغوی د ښځو په اړه په پټو خبرو نه پوهیږي او نه د وهي دا ښځې پښې خپلې په زمکه باندې ددې لپاره چې ښکاره نشي هغه څه شی چې دوی یې پټوي له زینت (ګانې) نه تاسې توبه وباسئ الله ➢ ته ټول ای مومنانو لپاره ددې چې تاسې کامیاب شئ .

⇦ ښائست ا و سینګار په رواج کې کسبي جوړښت ته ویل کیږي چې هغه له لباس او یا زیور څخه لاس ته راځي نو دلته د زینت ترجمه د زینت په ځای سره که وشي نو دا ډېره غوره ترجمه ده

نو معنی به دا شي چې ښځه به ځای د زينت پټ ساتي (کابلی تفسير)

⇦ په پورتني آيت کې چې کوم کسان ياد کړل شوي دي بس همدا د ښځې محرمين دي او دا هغه کسان دي چې د ښځې ټول عمر ورسره نکاح نه صحيح کيږي او لاندې به زه په مرتب ډول د ټولو هغه کسانو لست کېږدم چې شرعاً د ښځې محرم دي لکن د پېژندلو لنډه لاره يې داده چې د ښځې محرم د هغې موجوده خاوند او هر هغه څوک دی چې د ښځې ورسره ټول عمر نکاح نه صحيح کيږي يعني ددې د نکاح څخه ابدي (دائمي حرمت) وي او دا محارم په لاندې ډول ۱۳ کسان دي .

## محارم

۱. پلرونه او نيکونه که د پلار له اړخه نيکونه وي او که د مور له اړخ نه چې هرڅومره لوړ شي دا ټول محرمين دي .

۲. زامن او لمسيان که د لور له لوري مسيان وي او که د زوی له لوري که هرڅو ښکته وي دا ټول محرمين دي.

۳. ورونه که سکه وي (د مور او پلار نه) او که صرف د مور او يا صرف د پلار نه وي .

٤. وریرونه چې د هرډول ورور اولاد وي (که له پلار او مور نه وي او یا صرف د پلار یا صرف د مور څخه وي)

٥. د خویندو زامن که هرډول خویندې وي (سکه او که ناسکه وي)

٦. ترونه که د پلار سکه ورونه وي او که ناسکه ټول د ښځې محرم دي .

٧. ماماګان که د مور سکه ورونه وي او که ناسکه .

٨. دا پورتني ټول کسان که د نصب نه وي هم محرم دی او که د رضاع څخه وي هم محرم دی لکه چې رسول الله ﷺ فرمایي : "یحرم من الرضاع ما یحرم من النسب" [متفق علیه].

(یعني د رضاع څخه هم هغه څه حرامیږي کوم چې د نسب څخه حرامیږي)

٩. د خاوند زامن (چې د بلې ښځې څخه وي) او د هغوی زامن چې هرڅومره ښکته وي .

١٠. د خاوند پلار او د هغه نیکونه (که د پلار له اړخه وي او که د مور له اړخه) چې هرڅومره لوړ وي

١١. د لورانو میړونه او د لمسیانو میړونه دا حرمت هلته ثابتیږي چې ددې د لور او یا د

لمسی صرف له چا سره نکاح وشي وطی پکې ضروري نه ده .

۱۲. د مورانو خاوندان (لکن دا حرمت په وطی سره ثابتیږي که د ښځې مور چا په نکاح کړه او هغه ورسره جماع ونه کوله او بېرته یې پرېښوده نو دا سړی اوس ددې ښځې محرم نه دی)

۱۳ ددې کسانو سر بېره په اوس وخت کې چې د ښځې کوم خاوند دی لده څخه د ښځې پرده نشته .

⇦ دا ټول هغه کسان دي چې په ښځه باندې له دوی نه پرده کول ضروري نه دي او دا کسان د ښځې خاوند او نور هغه کسان دي چې په دائمي توګه ورسره د ښځې نکاح نه صحیح کیږي .

⇦ ددېنه بغیر نور هغه کسان چې زمونږ په معاشره کې اکثر دین دار او مذهبي خلک ترینه پرده نه کوي د مثال په ډول د ښځې د تره زامن، د ترور زامن، د عمه زامن، د خاله زامن ، د خور خاوند ، لېور ، د نندرور خاوند او داسې نور چې په پورتني لست کې نشته دا ټول غیر محرم دي پرده کول ترینه فرض دي او هېڅ صورت د روا والي یې نشته .

## دوهمه خبره

ښځه به په خپل بدن کې به کوم ځای پټوي او کوم ځای به ښکاره کوي؟ آیا د مخ پټول هم ضروري دي او کنه؟

⇦ له اجنبي سړي څخه د ښځې ټول بدن عورت دی له سر نه نیولې تر پښو پورې او د پردې په بحث کې له پورته ۱۳ ګروپونو یاد کړل شویو کسانو څخه پرته نور ټول کسان اجنبیان دي ځینې خلک دا وایي چې په ښځه باندې لازم نه دي چې هغه د مخ او لاس هم له اجنبي خلکو څخه پټ وساتي دا نظریه باطله ده او د جمهورو علماوو له نظره د اجنبي سړي نه باید ښځه د ټول بدن پرده وکوي او په کومو کتابونو کې چې ویل شوي دي چې (ښځه به ټول بدن پټوي بغیر د مخ او لاسونو څخه ) د هغوی مطلب په مانځه کې پرده کول دي یعني په کوم ځای کې چې ښځه مونځ کوي هلته که بالکل اجنبي څوک نه وي هم بیا به هم ښځه په مانځه کې خپل ځان پټوي صرف مخ او لاسونه که پټ نه کړي نو پروا یې نشته .

⇦ یعني که کوم عالم وایي چې د ښځې مخ او لاسونه عورت نه دي نو مطلب به یې دا وي چې په مانځه کې عورت نه دي او پټول یې ضروري نه دي پدې اړه د حضرت مالک ، حضرت اوزاعي

او حضرت شافعي رحمهم الله څخه روايت شوی دی هغوی فرمايل : جميع المرأة عورة إلا وجهها وكفيها، وما سوى ذلك يجب ستره في الصلاة

ترجمه : د ښځې ټول بدن عورت دی بغير د مخ او د لاسونو څخه يې او ددې دواړو نه بغير به نور ټول په مانځه کې پټوي .

## له پردي سړي څخه مخ پټول فرض دي

ځينې خلک چې پدې فرق نه پوهيږي ( کوم علما وايي چې مخ عورت نه دی دا د مانځه عورت ښيي) نو هغوی وايي چې د اجنبي سړي څخه مخ پټول ضروري نه دي نو دا خبره سراسر غلطه او د اسلام د اصولو څخه لرې خبره ده دا موضوع مې ځکه ددې کتاب برخه کړه چې څو ورځې وړاندې مې د يو کس سره پدې اړه بحث وو چې هغه ويل عرب علماء د ښځې مخ او لاسونه ستر نه مني نو ځکه دادې د مختلفو قسمونو څخه پدې موضوع چې د ښځې مخ هم ستر دی او د اجنبي سړي څخه به يې پټ ساتي ٣٦ دليلونه ستاسې خدمت ته ايږدم ترڅو دا خبره د لوستونکو په ذهن کې ښه پخه شي چې د ښځې مخ او لاسونه او ټول بدن له پردي سړي څخه ستر دي پټول يې ضروري دي.

١. که مونږ لږ په ځير سره دې آيت ته وګوروي

چې الله ➢ فرمايي :

سورة احزاب آية ٥٩

يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُل لِّأَزْوَاجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَاء الْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِن جَلَابِيبِهِنَّ ذَلِكَ أَدْنَى أَن يُعْرَفْنَ فَلَا يُؤْذَيْنَ وَكَانَ اللَّهُ غَفُوراً رَّحِيماً

ترجمه : ای نبي ووايه خپلو بيبيانو او لورانو او د مسلمانانو مېرمنو ته چې هغوی دی خپاره کړي په ټولو ځانونو خپلو له ټکريو (څادرونو) پړونو خپلو څخه دغه پټول د بدن نېږدې دي دې ته چې وبه پېژندل شي دوی (چې اصيلې دي او د عزت ښځې دي) بيا به دوی ته ضرر نه ورکول کيږي او الله ➢ ښه بښونکی او مهربان دی.

دا آيت په صريحه توګه ښکاره کوي چې ښځه به مخ او ټول بدن له اجنبي سړي څخه پټوي او جلباب (چې په آيت کې يې جلابيب جمع ياد کړل شوی دی) دا هغې چپن (د مروجه حجاب په ډول جامې) ته ويل کيږي چې ازاده وي او ټول بدن پټ کړلی شي ښځې يې چې په سر باندې واچوي او ښکته يې په خپل بدن باندې پرېږدي ټول ځان يې پکې پټ شي او کله چې همدا آيت نازل شو نو د صحابه وو بيبيانو همداسې وکول د حضرت ام سلمة رضی الله

عنها څخه يو آيت دى چې عبد الرزاق نقل کړى دى هغه مبارکه فرمايي :

کله چې الله ➢ هغه آيت نازل کړو چې پکې ويل شوي وو (يدنين عليهن من جلابيبهن) نو د انصارو ښځې په داسې حالت کې را ووتلې چې په ټول ځان باندې به يې توره جامه را اچولې وه .

٢. حضرت عائشه رضى الله عنها فرمايي :

ما د انصارو له ښځو څخه د کتاب الله څوک ښه تصديق کونکي نه د ي ليدلي کله چې په سورة ا لنور کې الله ➢ نازل کړل ( ولا يبدين زينتهن الاما ظهر منها وليضربن بخمرهن على جيوبهن ولا يبدين زينتهن) چې کوم سړي به واوريدو هغه به د خپل کور ښځو ته ورغلو خپلې مېرمن خپلې لور او خپلې خور او هرې خپلوانې ښځې ته به يې دا آيت تلاوت کړو بس هره ښځه به پاڅيده او يوه لويه کپړه (جامه) به يې را واخيسته په خپل سر به يې واچوله ځان به يې پکې پټ کړو او ځينو له خپلو لنګونو څخه څادرونه جوړ کړل او خپله پرده به يې پکې وکوله او حضرت عائشه رضى الله عنها مخکې زياتوي چې بيا به دوى په رسول الله ☸ پسې پداسې حالت کې وې چې سرونه او مخونه به يې پټ وو. (ابي داود)

۳. د حضرت ام عطیة رضی الله عنها ښځه روایت دی چې کله رسول الله ﷺ اعلان وکولو چې ښځې د هم د اختر مانځه ته را ووزي ښځو وویل : یا رسول الله ﷺ په مونږ کې ځینې داسې دي چې د هغوی سره جلبابونه (برقعې او یا لوی ټکري) نشته (چې خپل مکمل ځان پکې پټ کړو) رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : لتلبسها أُختها من جلبابها (بله خور د جلباب (برقه او یا لوی څادر) ورکړي (بخاري) پدې حدیث کې تصریح ده چې ښځه به د پردیو سړیو په مخ کې بغیر د مکملې پردې څخه نه راوزي .

٤. الله ➢ په سورت النور کې مسلمانانو ته امر کوي او فرمایي : قُل لِّلْمُؤْمِنِينَ يَغُضُّوا مِنْأَبْصَارِهِمْ (مومنانو ته ووایه چې خپل نظرونه د ښکته ساتي) نو که چېرته د ښځې د مخ لوڅ ساتل روا وي نو بیا به هغه ته کتل هم روا وي او که کتل ورته روا وي نو بیا الله ➢ مسلمانانو ته ولې د نظر ښکته ساتلو حکم کوي؟ نو ښکاره خبره ده چې د اجنبي ښځې مخ ته کتل نا روا دي په ښځه د هغه پټول ضروري دي او که هغې پټ کړی نه وي نو په مؤمن باندې خپل نظر ښکته کول ضروري دي.

٥. الله ➢ ښځو ته په قران کریم کې حکم کړی دی چې کله د دوی په پښو کې پانزیب او یا بل شی

وي نو دوی دې په زمکه قدم ورو ایږدي ترڅو د دوی ګانه داسې اواز ونه کوي چې سړي په فتنه کې وغورځوي الله ➢ پدې اړه فرمایي :

سورة النور آیة ۳۱

وَلَا يَضْرِبْنَ بِأَرْجُلِهِنَّ لِيُعْلَمَ مَا يُخْفِينَ مِنْ زِينَتِهِنَّ وَتُوبُوا إِلَى اللَّهِ جَمِيعًا أَيُّهَا الْمُؤْمِنُونَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ

ترجمه : او ښځې دې په زمکه باندې پښې نه وهي ترڅو د هغوی هغه زینت ښکاره نه شي چې دوی یې پټوي تول الله ➢ ته توبه وباسئ ښایي چې تاسې کامیاب شئ .

که پدې آیت کې څوک لږ فکر وکوي چې الله ➢ ښځې ددېنه منع کړي دي چې خپلې پښې له داسې زور سره په زمکه و وهي چې اواز یې سړي واوري ځکه د اواز سره به نارینه په فتنه کې واقع شي نو هرڅوک فکر کولی شي چې د چا د پښو د اواز سره یو نارینه په فتنه کې واقع کېدلی شي نو د هغې د ښائسته سترګو، شونډو ، مخ ، وېښتو په لېدلو سره به فتنه کې نه واقع کیږي؟

٦. الله ➢ هغه ښځو ته چې ډېرې زړې وي اجازه ورکوي او ورته وایي چې که دوی لباس له خپل ځان څخه د اسانتیا لپاره لرې کوي ګناه وربانډې نشته نو آیا ددې مطلب دا نه د ی چې حجاب لرې کول له ځان څخه دا ممنوع دي لکن زړو ښځو ته اجازه شته؟ او هروخت مونږ اجازه چا ته

پداسې شي کې ورکوو چې هلته ممانعت وي او چې ممانعت نه وي هلته هرڅوک هغه کار کولی شي خاصې اجازې ته پکې ضرورت نشته الله ➢ فرمايي :

سورة النور آية ٦٠

**وَالْقَوَاعِدُ مِنَ النِّسَاء اللَّاتِي لَا يَرْجُونَ نِكَاحًا فَلَيْسَ عَلَيْهِنَّ جُنَاحٌ أَن يَضَعْنَ ثِيَابَهُنَّ غَيْرَ مُتَبَرِّجَاتٍ بِزِينَةٍ وَأَن يَسْتَعْفِفْنَ خَيْرٌ لَّهُنَّ وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ**

ترجمه : او زړې ناستې له ښځو هغو څخه چې اميد نه لري دوی د نکاح (د ډېر زوړ والي له امله) پس نشته په دوی هېڅ ګناه چې کېږدي (وباسي) دوی جامې خپلې (لکه چادري او لوپټې) پدې حال کې چې ښکاره کونکې نه وي د ښائست خپل او دا چې دوی ځان وساتي (له ايستلو د ظاهري جامې څخه هم) خير دی دوی ته او الله ښه آوريدونکی (د ټولو خبرو) ښه عالم دی (په ټولو احوالو). يعني هغه ښځه چې په عمر کې زياته وي (بوډۍ وي) چې په هغې باندې د (جلباب چادري يا لوی ټکري) آغوستل ورباندې سخت وي نو خير که هغوی دا لويې جامې کيږدي نو که داسې نه وي (زړه نه وي) نو بيا اجازه ورته نشته .

٧. الله ➢ مسلمانانو ته فرمايي چې د پرديو ښځو څخه كوم شى غواړي نو د پردې تر شا به يې ترې غواړي الله ➢ فرمايي :
سورة احزاب آية ٥٣
وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَاعًا فَاسْأَلُوهُنَّ مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ ذَلِكُمْ أَطْهَرُ لِقُلُوبِكُمْ وَقُلُوبِهِنَّ

ترجمه : او كله چې له دوى څخه كوم شى غواړئ نو د پردې نه د بهر ځاى نه يې ترې وغواړئ (سره ددې چې آيت په ازواج مطهرات كې دى لكن حكم يې د ټولو مسلمانانو ښځو په حق كې عام دى)

نو دا چې الله ➢ امر كوي چې كوم شئ ورڅخه غواړئ د پردې نه بهر يې ترې غواړئ معنى يې داده چې مخ ته به يې نه ګورئ او ښځه به مخ له اجنبي سړي څخه پټوي.

٨. د جاهليت په زمانه كې به ښځې په اسانه سره د كورونو څخه را وتلې لكن هغوى هم لوڅې نه راوتلې په جاهليت كې هم خلك غيرتمن وو د غيرت په نوم هغه وخت هم جنګونه او مرګونه كېدل چې ښځې به راوتلې نو صرف مخونه به يې ښكاره كېدل د اسلام رڼا چې راغله نو الله ➢ ټولو ښځو ته حكم وكولو چې په كور كينئ يعني د جهالت په زمانه كې به ښځه راوتله او مخ به يې خلكو

ليدو نو اوس په كور كينئ ترڅو چې سخت ضرورت نه وي له كور نه مه راوزئ نو مخ به يې هم اوس څوک نه ويني الله ➢ فرمايي :

سورة الاحزاب آية ٣٣

وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَى

ترجمه : او قرار ونيسي (اى ښځو) په كورونو خپلو كې او مه ښكاره كوئ شائست خپل (پردو سړيو ته) په شان د اظهار (او ښائست) د جاهليت د ښځو ړومبنيو .

الله ➢ پدې آيت كې ټولو مسلماتو ښځو ته خبر وركړى دى چې فام كوه د جاهليت د زمانې د ښځو په ډول نشې (چې بغير د ضرورت نه له كور نه راوزې او بې پردې له كور نه را وزې)

٩. ښځه چې په حج او عمره كې په احرام كې شي نو هغوى چې كله په خيمه كې يوازې وي او يا خپل خاوند ورسره وي بيا مخ نه پټوي نو چې كله په حج او عمره كې د پرديو سړيو سره مخامخ كيږي ددې په اړه بيا حضرت عائشه رضى الله عنها فرمايي :

كَانَ الرُّكْبَانُ يَمُرُّونَ بِنَا وَنَحْنُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُحْرِمَاتٌ فَإِذَا حَاذَوْا بِنَا سَدَلَتْ إِحْدَانَا جِلْبَابَهَا مِنْ رَأْسِهَا عَلَى وَجْهِهَا فَإِذَا جَاوَزُونَا كَشَفْنَاهُ ".

ترجمه : خلک به زمونږ په خوا کې تېرېدل مونږ به د رسول الله ﷺ سره په احرام کې وو کله به چې مونږ ته را نیږدې شول مونږ به د مخ د پټولو ټوټه له سر نه په مخ را ښکته کړه او کله به چې له مونږ څخه تېرشول بېرته به مو مخ ښکاره کړو .

نو ام المؤمنین رضی الله عنها په ښکاره ټکو کې وویل چې څوک به تېرېدل بیا به مونږ مخونه پټ کړل او چې کله به څوک نه وو بیا به مونږ خپل مخونه ښکاره کړل .

۱۰. حضرت اسماء بنت ابي بکر د حضرت عائشې رضی الله عنهما خور فرمایي :

کنا نغطي وجوهنا من الرجال

یعني مونږ به له سړیو څخه خپل مخونه پټول (اخرجه الحاکم)

حضرت اسماء رضی الله عنها په ښکاره الفاظو کې وفرمایل چې دوی به له سړیو څخه مخونه پټول .

۱۱. حضرت عائشه رضی الله عنها فرمایي :

د سحر په مانځه کې به ښځې د رسول الله ﷺ سره مانځه ته حاضرېدلې لکن په انتهایي درجه به پټې وې .

په انتهایي درجه پټېدل همدا مطلب چې د دوی مخونه په پټ وو ځکه په انتهایي درجه پټېدل

دا معنی چې ټول بدن به یې پټ وو او مخ په بدن کې مهمه برخه ده .

۱۳ . د حضرت ابن عمر ❼ نه روایت دی هغه فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل :

**مَنْ جَرَّ ثَوْبَهُ خُيَلاءَ لَمْ يَنْظُرْ اللَّهُ إِلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَقَالَتْ أُمُّ سَلَمَةَ فَكَيْفَ يَصْنَعْنَ النِّسَاءُ بِذُيُولِهِنَّ قَالَ يُرْخِينَ شِبْرًا فَقَالَتْ إِذًا تَنْكَشِفُ أَقْدَامُهُنَّ قَالَ فَيُرْخِينَهُ ذِرَاعًا لا يَزِدْنَ عَلَيْهِ "**

ترجمه : چا چې د کبر له امله جامه په ځان پسې را کش کړه (دومره یې اوږده کړه چې په زمکه ورپسې کش کېدله) الله ➢ به د قیامت په ورځ (د رحمت په نظر) ورته ونه ګوري حضرت ام سلمة ورته وویل : نو ښځې بیا په خپلو جامو څه وکوي؟ رسول الله ﷺ ورته وویل یوه لویشت یې دې اوږدې کړي .. هغې مبارکې ورته وویل : بیا خو به د ښځې پښې ښکاره کیږي؟ رسول الله ﷺ ورته وویل : نو بیا دې نیم ګز اوږدې کړي او تردې د نورې لا پسې نه اوږدې کوي.

نو ددې حدیث نه معلومیږي چې رسول الله ﷺ ښځو ته ددې اجازه هم نه ورکوي چې هغوی داسې جامه استعمال کړي چې د دوی پښې ترینه ښکاره شي ځکه که یو اجنبي انسان یې ووینې نو په فتنه کې به واقع شي نو چې د اجنبیې ښځې د پښو د لیدلو نه په فتنه کې د واقع کېدلو نه ویره وي نو ددې

املـه ښځې تـه حکم کـيږي چې هغـه د خپلـې پـښې پـټې وساتـي نـو د مخ پـه اړه د لـوستـونـکي څـه گمـان دى؟

١٤. رسول الله ﷺ د احرام پـه حالـت کې د ښځو پـه اړه فـرمـايـي:

(لا تـنـتقـب الـمحرمـه ولا تـلـبس الـقفـازيـن)

يـعني پـه احرام کې بـه ښځه نقـاب (د مخ پـرده) نـه استعمـالـوي او نـه بـه دستـکش پـه لاس کـوي (لاس بـه هم نـه پـټوي) نـو دا حکم هغـه ښځې تـه شوى دى چې پـه احرام کې وي نـو هغـه ښځه چې پـه احرام کې نـه وي معلـومـه ده چې دا حکم ورتـه نـشتـه بـلـکه هغې تـه حکم دى چې هغـه بـه مخ هم پـټوي او لاسونـه پـه هم د پـرديـو خلـکو د لـيدلـو نـه پټ ساتـي.

١٥. رسول الله ﷺ فـرمـايـي:

لا تـبـاشر الـمرأة فـتـنعتـها لـزوجـها كـأنـه يـنظر إلـيـها (رواه الـبخاري)

تـرجمـه: يـوه ښځه د د بـلـې ښځې سره داسې نـه مخـامخ کـيږي چې بـيـا يـې خاوند تـه پـه داسې ډول صفـت وکـوي لـکه هغـه يـې چې ويـنـي.

کـه د پـورتـنـي حديـث مفـهوم تـه پـه غور سره وگـورو نـو مـونږ تـه بـه معلـومـه شي چې ښځې کـلـه چې بـهر گـرځي نـو مخ پـټوي او کـلـه چې يـوه ښځه د بـلـې ښځې سره مخـامخ کـيږي نـو هغوى يـو بـل لـيدلـى شي نـو يـوه ښځه چې کـور تـه راشي هغه بـيـا خپل خاونـد تـه

قصه کوي چې فلانۍ مې ولیده غټې غټې سترګې یې وې لوړه پوزه یې وه سپین رنګ یې خوله یې ګرده وه .... نو دا کار هم نا روا دی چې په غیاب کې کوم اجنبي سړي ته د کومې اجنبي ښځې د مخ نښې ویل نا روا دي نو څه معنی د اجنبي سړي کتل به ورته روا وي؟

١٦. د حضرت مغیرة بن شعبة ❼ نه روایت دی هغه فرمایي :

ما یوې ښځې ته د واده پیغام ور ولېږلو بیا مې دا خبره رسول الله ﷺ ته یاده کړه رسول الله ﷺ راځخه پوښتنه وکوله : تا لیدلې ده؟ ما ورته وویل نه ...

رسول الله ﷺ راته وویل : ځه ورشه ویې ګوره دا ستاسې دواړو لپاره غوره ده .

حضرت مغیره ❼ فرمایي بیا راغلم دا له مور او پلار سره ناسته وه او مخ یې پټ وو .. ما ورته وویل ماته رسول الله ﷺ امر کړی دی چې د نکاح نه وړاندې زه ددې مخ ته وګورم ... مور او پلار یې دواړه پدې خبره غلي (چُپ) شول او دا خبره وربانديې سخته تمامه شوه بیا هغې جینۍ د ټکري یو طرف پورته کړو او ویې ویل زه تاته قسم درکوم که رسول الله ﷺ تاته امر کړی وي چې

ماته وګوره نو راته وګوره او که هغه ☸ درته امر نه وي کړی بیا ماته مه ګوره .

حضرت مغیرة ❼ فرمايي ما بیا ورته وکتل او بیا مې ورسره نکاح وکوله او زما په وړاندې د هغې ډېر لوی مقام وو .

نو که چېرته د رسول الله ☸ په زمانه کې ښځې په لوڅ مخ ګرځېدلی نو د دومره تکلیف او د مور پلار نه د اجازې غوښتلو څه ضرورت وو خو حضرت مغیرة ❼ به چېرته په لاره کې ورته ناست وو او دا جینۍ به یې کتلې وه .

۱۷. حضرت جابر بن عبد الله ❼ فرمايي ما د رسول الله ☸ نه واورېدل چې فرمایل یې :

اذا خطب احدکم المرأه فقدر علی ان یرای منها ما یعجبه فیدعوه الی نکاحها فلیفعل

ترجمه : کله چې په تاسې کې یو چا ښځې ته د نکاح پیغام ور لېږلو نو که پدې وتوانېدو چې په هغې کې هغه څه ووینې چې دی یې نکاح ته ورغواړي نو ودې کوي .

ما د بني سلمة یوې جینۍ ته د نکاح پیغام ور لېږلو بیا به زه ورته د خورما وو د ونو په بیخونو کې پټېدم (هغې په خورماوو کې کار کولو) ترڅو ما د هغې ځینې هغه څه (ښائست)

ولیدل چې زه یې د هغې نکاح ته ور غوښتلم بیا مې ورسره نکاح وکوله .

د حضرت جابر ❼ ددې حدیث نه ښکاره کیږي چې دهغې د ښائست (مخ) لیدل داسې اسان نه وو چې هغه ورته په لاره کې ولاړ وی هغه به لیدلی وای ځکه د هغې مخ به پټ وو نو ځکه دده ❼ دیته اړتیا وه چې دی باید هغې ته په کوم ځای کې پټ شوی وای او د یو څه وخت وروسته یې بیا د هغې ځینې مخ ولید .

۱۸. حضرت عبد الله بن عمر بن العاص ❼ فرمایي : مونږ له رسول الله ☸ سره یو کس دفن کړو کله چې مونږ بېرته را وګرځېدو د رسول الله ☸ دروازې ته را ورسېدو چې یوه ښځه را روانه وه زمونږ دا ګمان نه وو چې رسول الله ☸ به هغه وپېژني چې رسول الله ☸ ورته وکتل ویې پېژنده ورته یې وویل :

(یا فاطمة من این جئتِ؟) فاطمې له کومه ځایه راغلې؟ (رواه احمد)

د پورتني حدیث نه ښکاره کیږي چې صحابه وو فکر وکاوه چې رسول الله ☸ به دا را روانه ښځه ونه پیژني ځکه د هغې مخ پټ وو که مخ یې پټ نه وای نو بیا به صحابه وو هم پېژندلې وه او د رسول الله ☸ په پېژندلو کې به هېڅ شک نه وو لکن

رسول الله ﷺ چې ورته وکتل د ښځې مخ پټ وو لکن د حرکاتو او سکناتو او د تللو له طریقې نه يې و پېژندله چې دا دده صلی الله علیه وسلم لور فاطمه وه .

۱۹. امام صنعاني رحمه الله فرمايي :

ويباح كشف وجهها حيث لم يأت دليل بتغطيته، والمراد كشفه عند صلاتها بحيث لا يراها أجنبي، فهذه عورتها في الصلاة، وأما عورتها بالنظر إلى نظر الأجنبي إليها فكلها عورة

ترجمه : او روا دي چې دا خپل مخ ښکاره کړي او په پټولو يې کوم دليل نشته ددې مطلب دادی په مانځه کې پداسې توګه چې کوم اجنبي کس يې ونه ويني دا يې په مانځه کې عورت دی او د پردي سړي د کتلو نه د ښځې ټول ځان عورت دی .

۲۰. د انسان عقل هم دا مني چې کله هم د کومې ښځې سره کوم نارينه په فتنه کې و اقع کيږي په هغه کې د ښځې د بدن دومره دخل نشته لکه د هغې د مخ چې څومره دخل دی په خاصه توګه هم په هغه ځای کې چې ښځه يو څه ښائسته وي نو انسان يې صرف مخ ته ګوري او که د کومې ښځې نور بدن قد او قامت هرڅومره ښکلي وي لکن مخ

يې ښکلى نه وي نو څوک يې په هغه اندازه نه خوښوي لکه مخ يې چې ښکلى وي .

۲۱. حضرت عبد الله ابن عباس ❼ ددې آيت (يدنين عليهن من جلابيبهن) په تفسير کې فرمايي :

أمر الله نساء المؤمنين إذا خرجن من بيوتهن في حاجة أن يغطين وجههن من فوق رؤوسهن بالجلابيب، ويبدين عينا واحدة

ترجمه : الله ➢ د مومنانو ښځو ته امر کړی دی چې کله دوی د کوم کار لپاره له کور نه بهر ته وزي دوی دې مخونه په هغه پرده کې پټوي چې د دوی په سرونو باندې وي او (د ضرورت لپاره) د صرف يوه سترګه ښکاره کړي .

۲۲. په سورت النور کې چې الله ➢ فرمايي (ولا يبدين زينتهن يعني دوی د خپل زينت چا ته نه ښکاره کوي) حضرت ابن عباس رضى الله عنه فرمايي ددې څخه مطلب هغه شيان دي چې د ښځې په بدن کې لګول شوي وي لکه ګوتمه او رانجه يعنې دا به هم پټوي (او څرنګه چې د ګوتمې او د رانجو پټول خو ضروري نه دي نو مطلب يې دی چې هغه ځايونه به پټوي په کوم ځای کې چې دا د زينت شيان لګول شوي دي)

۲۳. ابو بکر الجصاص رحمه الله فرمايي
المرأة الشابَّة مأمورة بستر وجهها من الأجنبي، وإظهار الستر والعفاف عند الخروج، لئلا يطمع أهل الرِّيب فيها (أحكام القرآن 458/3 )

ترجمه : ځواني ښځې ته امر شوی دی چې دا بايد له پردي سړي څخه مخ پټ کړي او کله چې بهر ته وزي بايد خپله پاکي او پرده ښکاره کړي ددې لپاره چې د بد نيت خاوندان زړه ته څه وانه چوي .

۲٤. امام شمس الائمة السرخسي رحمه الله فرمايي :
حرمة النَّظر لخوف الفتنة، وخوف الفتنة في النَّظر إلى وجهها، وعامة محاسنها في وجهها أكثر منه إلى سائر الأعضاء (المبسوط 152/10)

ترجمه : د نظر حراموالی يې د فتنې له ډاره څخه دی او د فتنې ډار يې مخ ته او نور بدن ته په کتلو کې دی او په مخ کې له نورو اندامونو څخه زيات دی .

۲٥. ابن عابدين رحمه الله فرمايي :

تُمنع من الكشف لخوف أن يرى الرجال وجهها فتقع الفتنة، لأنَّه مع الكشف قد يقع النَّظر إليها بشهوة

ترجمه : ښځه به منع کول کیږي چې خپل مخ پداسې ځای کې ښکاره کړي چې سړي یې ویني او فتنه واقع شي ځکه د مخ د ښکاره کېدو سره کله هغې ته په شهوت سره نظر کیږي .

۲٦. مفتي محمد شفیع صاحب فرمایي :

وبالجملة فقد اتفقت مذاهب الفقهاء، وجمهور الأمَّة على أنَّه لا يجوز للنِّساء الشوابّ كشف الوجوه والأكفّ بين الأجانب، ويُستثنى منه العجائز؛ لقوله تعالى :[وَالْقَوَاعِدُ مِنَ النِّسَآءِ ] (المرأة المسلمة ص 202) .

ترجمه : خلاصه دا چې فقهاوو اتفاق کړی دی او جمهور امامان پدې رایه دي چې ځوانانو ښځو ته نه دي روا چې خپل مخونه او لاسونه د پردیو سړیو په مینځ کې ښکاره کړي او زړې ددې حکم نه مستثنی دی (هغوی که لاسونه او مخونه پټ نه کړي ګناه وربانديې نشته) ځکه الله ➢ فرمایي [وَالْقَوَاعِدُ مِنَ النِّسَآءِ ] او هغه ناستې زړې ښځې .... تر اخره پورې (مخکې یې ترجمه تېره شویده)

۲۷. حضرت سهارنپوري رحمه الله فرمايي:

اتفاق المسلمين على منع النِّساء أن يخرجن سافرات الوجوه، لاسيما عند كثرة الفساد وظهوره (بذل المجهود شرح سنن أبي داود 431/16).

د مسلمانانو اتفاق په منع د ښځو باندې چې دوی د له کور نه بهر پداسې حالت کې نه وزي چې مخونه يې ښكاره وي د فساد په زمانه کې.

۲۸. أبو عليٍّ المشداليُّ رحمه الله د امام مالک صاحب په مذهب دی او لوی عالم دی هغه فرمايي:

إنَّ من كانت له زوجة تخرج وتتصرف في حوائجها بادية الوجه والأطراف -كما جرت بذلك عادة البوادي- لا تجوز إمامته، ولا تقبل شهادته

ترجمه: د چا چې ښځه وي هغه په خپل سر بهر ته وزي د خپلو کارونو لپاره او چې بهر ته وزي مخ لاسونه او پښې يې لوڅ وي لکه په کليو کې چې داسې رواج وي نو ددې سړي امامت نه صحيح کيږي او دده گواهي د قبول وړ نه ده.

۲۹. ابن حجر رحمه الله د مشهور شافعي عالم الزيادي څخه نقل کړي دي هغه فرمايي:

أنَّ عورة المرأة أمام الأجنبي جميع بدنها، حتى الوجه والكفين على المعتمد.

ترجمه : بېشکه د ښځې عورت د پردي سړي په مخ کې د هغې ټول بدن دی تر مخ او لاسونو پورې د معتمد مذهب له مخې .

۳۰. بل شافعي عالم ابن ا رسلان رحمه الله فرمايي :

اتفق المسلمون على منع النِّساء أن يخرجن سافرات عن الوجوه، لاسيما عند كثرة الفسَّاق (عون المعبود 162/11) .

ترجمه : مسلمانانو اتفاق کړی دی په منع کولو د ښځو چې پداسې حالت کې له کور نه وزي چې مخونه يې ښکاره وي په خاصه توګه په هغه وخت کې چې فاسقان په معاشره کې زيات وي .

۳۱. بل شافعي المسلک عالم الشرقاوي رحمه الله فرمايي :

وعورة الحرَّة خارج الصلاة بالنِّسبة لنظر الأجنبيِّ إليها فجميع بدنها حتَّى الوجه والكفين، ولو عند أمن الفتنة. حاشية الشرقاوي على تحفة الطلاب 174/1.

ترجمه : د اصیلي ښځې عورت له مانځه نه بهر د اجنبي سړي په وړاندې د هغې ټول بدن دی (ښځه به ټول بدن له پردي سړي څخه پټ ساتي) تر مخ او لاسونو پورې اګر که د فتنې څخه امن هم وي .

۳۲. امام نووي رحمه الله فرمايي : لا يجوز للمسلمة أن تكشف وجهها ونحوه من بدنها ليهوديَّة أو نصرانيَّة وغيرهما من الكافرات، هذا هو الصحيح في مذهب الشافعيِّ رضي الله عنه (الفتاوى ص 192) .

ترجمه : مسلماني ته نه دي روا چې هغه خپل مخ او يا نورې د بدن برخې د يهودیې او نصرانيې او نورو کافراتو ښځو په وړاندې ښکاره کړي او دا د امام شافعي رحمه الله په مذهب کې صحيح رايه ده . (د کفارو ښځو څخه د پردې راز دادی چې هغوی به ددې مسلمانې ښځې د ښائست په اړه نورو کافرانو نارينه وو ته خبرې کوي)

۳۳. د حنبلي مذهب امام حضرت احمد ابن حنبل رحمه الله فرمايي :

ظفر المرأة عورة، فإذا خرجت من بيتها فلا تُبِن منها شيئاً ولا خفها، فإنَّ الخفَّ يصف القدم، وأحبُّ إليَّ أن تجعل لكمها زراً عند يدها حتَّى لا يبن منها شيء (انظر الفروع 601/1)

ترجمه : د ښځې نوک هم عورت دی کله چې له کور نه وزي نو ددې د بدن څخه به هېڅ هم نه ښکاره کيږي حتی چې موزه يې هم (چې په پښه پورې سريښ لګېدلې وي) ځکه دا ډول موزه هم د پښې حجم ښکاره کوي او زما دا خوښيږي چې ښځه بايد په لستونې پسې داسې بله ټوټه و ګنډي چې هغه يې لاس پټ کړي ترڅو يې د لاس هېڅ برخه ښکاره نشي .

٣٤. ابن تيميه رحمه الله فرمايي :

د حجاب د آيت تر نازلېدو وړاندې به ښځې پداسې حالت کې له کور نه راوتلې چې صرف مخ او لاسونه به يې څرګند وو نو د حجاب آيت راغلو او دوی يې لداسې وتلو څخه منع کړې او دی فرمايي :

وكشف النِّساء وجوههنَّ بحيث يراهنَّ الأجانب غير جائز، وعلى ولي الأمرِ الأمرُ بالمعروف والنهي عن هذا المنكر وغيره، ومن لم يرتدع فإنَّه يعاقب على ذلك بما يزجره

ترجمه : ښځې چې داسې مخ ښکاره کوي چې پردي خلک يې ووينې نا روا دي هغه کس چې ددې ښځې متصرف وي دېته به د نيکو (پردې کولو) امر کوي او له بدو (بې پردګې) څخه منع کوي او که چا دا خبره (د پردې کولو) ونه منله نو هغې ته به عذاب (سزا) ورکوي.

۳۵. امام ابن قیم رحمه الله فرمایي :

الشارع شرع للحرائر أن يسترن وجوههنَّ عن الأجانب، وأمَّا الإماء فلم يوجب عليهنَّ ذلك

ترجمه : د شریعت جوړونکي په اصیلو ښځو باندې فرض کړي دي چې خپل مخونه له پردیو سړیو څخه پټ کړي او په وینځو باندې دا نه دي فرض .

او بیا فرمایي : والعورة عورتان: عورة في الصلاة، وعورة في النَّظر، فالحرَّة لها أن تصلي مكشوفة الوجه والكفين، وليس لها أن تخرج في الأسواق ومجامع النَّاس كذلك

عورتونه په دوه ډوله دي یو د مانځه عورت دی او بل د کتلو عورت دی نو د یوې اصیلې ښځې لپاره روا دي چې هغه پداسې حالت کې مونځ وکوي چې لاسونه او مخ یې ښکاره کیږي لکن دا به په داسې حالت کې داسې ځای ته نه راوزي چې هلته خلک ولاړ وي الله ➢ دوی ته فرمایي ( و لایبدین ..... آیة مخکې تېر شو) امام ابن قیم رحمه الله نور زیاتوي په کوم ځای کې چې لاسونه او مخ له عورت څخه مستثنی شوي دي او ویل کیږي چې مخ او لاسونه پټول ضروري نه دي نو ددې خبرې معنی داده چې په مانځه کې یې پټول ضروري نه دي

ځکه د يوې اصيلې ښځې بدن ته بغير د محرم او خاوند څخه بل چا ته کتل ناروا دي ترڅو چې ضرورت نه وي (د ضروتونو تفصيل به را شي انشاء الله)

٣٦. شيخ شنقيطي رحمه الله فرمايي :

إنَّ المنصف يعلم أنَّه يبعد كل البعد أن يأذن الشارع للنِّساء في الكشف عن الوجه أمام الرِّجال الأجانب، مع أنَّ الوجه هو أصل الجمال والنَّظر إليه من الشابَّة الجميلة هو أعظم مثير للغرائز البشريَّة، وداع إلى الفتنة، والوقوع فيما لا ينبغي. (أضواء البيان تفسير القرآن بالقرآن 602/6) .

ترجمه : د انصاف خاوند پدې پوهيږي چې دا ډېره زياته لرې خبره ده چې شريعت دې ښځو ته اجازه ورکړي چې هغوی د خپل مخونه د پرديو سړيو په وړاندې لوڅ کړي سره ددې چې مخ د ښائست اصل دی او د ځوانې ښائسته ښځې مخ ته کتل د انساني جنسي طبيعت را ښورونکی او د فتنې لوري او په نا مناسب شي کې واقع کېدلو ته غوښتونکی شی دی .

## دریمه خبره

## دښځې لپاره د مخ ښکاره کولو روا صورتونه

د ښځې لپاره په څه وخت کې مخ ښکاره کول روا دي؟

لږ مخکې په دې اړه چې په ښځه باندې لازم دي چې د اجنبي سړي څخه باید خپل مخ پټ وساتي ګڼ شمېر (۳٦) دلیلونه تېر شول لکن په شریعت کې داسې صورتونه هم شته چې هلته ښځې ته روا دي له خپل مخ څخه پرده پورته کړي او اجنبي سړي ته خپل مخ ښکاره کړي یو څو یې تاسې ته در شمارم .

۱. خِطبه

هغه ښځه چې څوک ورسره نکاح کول غواړي دغه سړي ته روا ده چې دې ښځې ته وګوري لکن پدې شرط چې دواړه به په کوم ځای کې سره یوازې نه وي او سړی به ددې د بدن سره لاس نه لګوي .

⇦ حضرت جابر بن عبد الله ❼ فرمایي ما د رسول الله ☸ نه واورېدل چې فرمایل یې :

اذا خطب احدكم المرأه فقدر على ان يراى منها ما يعجبه فيدعوه الى نكاحها فليفعل

ترجمه : كله چې په تاسې کې يو چا ښځې ته د نکاح پيغام ور لېږلو نو که پدې وتوانېدو چې په هغې کې هغه څه ووينې چې دی يې نکاح ته ورغواړي نو ودې کوي .

ما د بني سلمة يوې جينۍ ته د نکاح پيغام ور لېږلو بيا به زه ورته د خورما وو د ونو په بيخونو کې پټېدم (هغې په خورماوو کې کار کولو) ترڅو ما د هغې ځينې هغه څه (ښائست) وليدلو چې زه يې دهغې نکاح ته ور غوښتلم بيا مې ورسره نکاح وکوله .

⇦ همدارنګه حضرت ابو هريره ❼ فرمايي زه د رسول الله ☸ سره وم چې يو کس ورته راغلو ورته يې وويل چې په انصارو کې د يوې ښځې سره واده کوي رسول الله ☸ ورته وويل : تا هغې ته کتلي دي؟ هغه سړي ورته وويل نه بيا رسول الله ☸ ورته وويل : ورشه ورته وګوره ځکه د انصارو په سترګو کې يو شی دی (مسند امام احمد ، صحيح مسلم ، صحيح النسائي)

۲. د معاملې په وخت کې .

کومه ښځه چې په خپله کوم شی اخلي او خرڅوي نو څوک چې پدې باندې کوم شی خرڅوي او اوس يې دا قېمت نه ورکول غواړي هغه له دې سره قرض کوي نو د هغه قرض ورکونکي به دېته ضرورت وي چې دا وګوري او ويې پېژني څکه که بله ورځ هغه پيسې غواړي نو چې په شکل يې نه پېژني نو د چا نه به يې غواړي امام ابن قدامه رحمه الله فرمايي : وإن عامل امرأة في بيع أو أجارة فله النظر إلى وجهها ليَعْلَمَها بعينها فيرجع عليها بالدّرَك (يعني که چا له ښځې سره معامله کوله په اخستلو خرڅولو کې او يا په اجاره کې نو هغه ددې مخ ته کتلی شي ددې لپاره چې دی هغه وپېژني او له دې څخه بل وخت د هغه شي قيمت وغواړي . د امام احمد رحمه الله نه يو قول نقل شوی دی چې هغه دې کار ته مکروه ويلي دي او هغه ويلي دي که د فتنې وېره وه نو بيا مکروه دی او دا مکروه په هغه صورت کې دي چې ددې لپاره دا معامله اخستل او خرڅول ضروري نه وي يعني ددې بل داسې څوک وي چې که دا پخپله دا معامله ونه کوي نو بل څوک به يې وکوي نو بيا مکروه ده او که چېرته ددې خامخا دې کار ته ضرورت وو او په کتلو سره د شهوت

څخه وېره نه وه نو بيا هېڅ پروا نشته (فتح القدير)

۳. علاج

کله چې د ښځې د بدن په کومه برخه کې څه ډول تکليف وي نو هغه کولی شي د علاج لپاره يې ډاکټر ته ښکاره کړي که هغه مخ وي او يا بل هر ځای لکن پدې شرط چې ډاکټر او دا ښځه به سره يوازې نه وي د ښځې محرم څوک به ورسره وي دا په هغه صورت کې چې ددې علاج لپاره ښځه ډاکټره نه وي او که چېرته مسلمان او کافر ډاکټران موجود وو نو بيا مسلمان ډاکټر ته ورتلل غوره دي تر کافر څخه .

او بل شرط يې دادی چې صرف دومره ځای به ښکاره کوي څومره ته چې په علاج کې ضرورت وي .

ډاکټر ته هم روا نه دي چې هغه تر ضرورت زيات د اجنبي ښځې بدن مس کړي او که يې يوه ثانيه او يا د يوې ستنې په اندازه هم قصداً د ضرورت نه بغير مس کوي نو ګناه ده په رد المحتار کتاب کې پدې اړه ليکلي دي :

إذا كان المرض في سائر بدنها غير الفرج يجوز النظر إليه عند الدواء ، لأنه موضع ضرورة ، وإن كان موضع الفرج فينبغي أن يعلّم امرأة تداويها ، فإن

لم توجد وخافوا عليها أن تهلك ، أو يصيبها وجع لا تحتمله يستروا منها كل شيء إلا موضع العلة ، ثم يداويها الرجل ، ويغض بصره ما استطاع إلا عن موضع الجرح (رد المحتار)

ترجمه : کله چې بیماري په ټول بدن کې وه د فرج نه بغیر نو ټول بدن ته یې کتل روا دي د علاج په وخت کې ځکه اوس دا ټول بدن د ضرورت ځای شو او که دا بیماري د فرج په ځای کې وه د مثال په ډول زخم وو نو بیا په کار ده چې ډاکټر کومې ښځې ته ور وښیي چې ددې د زخم علاج وکوي او که چېرته داسې ښځه نه پیدا کېده او په انتظار کې ددې د هلاکت خطر وو او یا دا په درد کې وه نو نور بدن د ورڅخه پټ کړي صرف د زخم ځای د ور ښکاره کړي او ډاکټر به تر خپلې وسې پورې خپلې سترګې له نورو شیانو څخه اړوي او صرف زخم ته به نظر کوي .

په همدې ډول که نارینه بیمار وي او ډاکټره ئې علاج کوي نو په همدې ډول د ټولو پورتنیو شرطونو له مخې یوه ښځه کولی شي د یو سړي علاج وکوي او پدې اړه په بخاري شریف کې یو حدیث نقل شوی دی چې حضرت الربیع بنت معوذ رضی الله عنها فرمایي :

كنا نعزو مع رسول الله صلى الله عليه وسلم ، نسقي القوم ونخدمهم ، ونرد القتلى والجرحى إلى المدينة

ترجمه : مونږ (ښځو) به د رسول الله ﷺ سره په جنګ کې شرکت کاوه قوم (مسلمانانو) ته به مو اوبه ورکولې او د دوی خدمت به مو کاوه شهيدان او زخميان به مو مدينې ته راوړل .

په فتح الباري کې ددې مسئلې په اړه فرمايي :

تجوز مداواة الأجانب عند الضرورة ، وتقدر بقدرها فيما يتعلق بالنظر ، والجسّ باليد ، وغير ذلك " فتح الباري

ترجمه : روا دی علاج د پرديو سړيو د ضرورت په وخت کې لکن د ضرورت تر حده پورې به کتل او په لاس سره مس کول او داسې نور وي .

٤. ګواهي

د ګواهي اخستلو او ګواهي ورکولو په وخت کې ښځې ته اجازه شته چې خپل مخ ښکاره کړي کله چې دا په کومه خبره کې د دوو کسانو په مینځ کې ګواه کیږي د مثال په ډول په کومه دعوه کې ، نکاح کې نو باید دواړه طرفونه پدې پوه شي چې ګواه څوک ده او د دعوې په وخت کې هغوی ته خپل ګواه یاد وي او چې کله د قاضي په مخ کې دا خپله ګواهي وړاندې کوي نو قاضي باید وپیژني چې ګواهي ورکونکې څوک ده او دواړه په دعوه کې ښکېل کسان هم باید پوه شي چې دا څوک ده چې د یو طرف په ګټه ګواهي ورکوي همدارنګه چې دا کومه معامله کوي او دا پدې خپله معامله باندې څوک ګواه نیسي نو ګواه باید ددې مخ ووینې او وپیژني چې دا ګواه دی د چا په اړه ساتي او چې کله د ګواهي وړاندې کولو وخت وي هلته هم باید د ښځې مخ ښکاره وي ترڅو ګواه په سمه توګه خپله ګواهي صرف د همدې په اړه وړاندې کړلی شي پدې اړه امام ابن قدامة رحمه الله فرمایي :

وللشاهد النظر إلى وجه المشهود عليها لتكون الشهادة واقعة على عينها ، قال أحمد : لا يشهد على امرأة إلا أن يكون قد عرفها بعينها

ترجمه : ګواه کولی شي د هغه ښځې مخ ته وګوري چې دی يې په اړه ګواهي ساتي امام احمد رحمه الله فرمايي چې ګواهي به نه وړاندې کوي مګر په هغه ښځه چې دی يې په سمه توګه پېژني (المغني، فتح القدير)

٥. د قاضي فيصله

کله چې قاضي د کومې ښځې په ګټه يا تاوان فيصله کوي پدې وخت کې بايد د ښځې مخ ښکاره وي ترڅو قاضي په سمه توګه پوه شي چې دی دا فيصله د چا په ګټه او يا تاوان باندې کوي او که د ښځې مخ ښکاره نه وي څه معلومه ده چې دا فيصله په چا کيږي او کله چې دا فيصله تطبيق نشي نو اسلامي حکومت به د قاضي فيصله په زور عملي کوي نو چې ښځه معلومه نه وي نو په چا به يې عملي کوي؟

و..أحكام الشهادة تنطبق على القضاء سواءً بسواء ، لاتحادهما في علة الحكم (الدر المختار)

يعني د ګواهي احکام د قضاء د احکامو سره سر په سر يو شان دي ځکه د حکم علت په دواړو کې يو شی دی .

٦. د ماشوم په وړاندې

هغه ماشوم چې د ښځو په اړه په خاصو خبرو او په شهوت باندې نه پوهیږي د هغې په مخ کې هم ښځه خپل مخ ښکاره کولی شي له هغه نه وربانديې پرده کول فرض نه دي الله ➢ کله چې هغه کسان یادوي چې په ښځه باندې لازم نه دي چې له هغوی نه پرده وکوي نو فرمايي :

أَوِ الطِّفْلِ الَّذِينَ لَمْ يَظْهَرُوا عَلَى عَوْرَاتِ النِّسَاءِ

ترجمه : او بل هغه ماشوم چې د ښځو په اړه په پټو خبرو لا تر اوسه نه وي خبر (ددینه هم پرده کول وربانديې ضروري نه دي)

همدارنګه الله ➢ فرمايي :

سورة النور آية ٥٩

وَإِذَا بَلَغَ الْأَطْفَالُ مِنْكُمُ الْحُلُمَ فَلْيَسْتَأْذِنُوا كَمَا اسْتَأْذَنَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۚ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمْ آيَاتِهِ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ

ترجمه : او کله چې ورسیږدل هلکان ستاسې حد د بلوغ ته پس اجازه د وغواړي په ننوتلو کې پر تاسې باندې لکه چې اجازه غوښته هغه کسانو چې بالغان شوي وو پخوا له دوی نه همداسې بیانوي تاسې ته الله ➢ خپل آیتونه الله ➢ ښه عالم او د حکمت خاوند دی .

نو پدې آیت کې پدې خبره تصریح شویده چې کله هلکان بلوغ ته ورسیږي بیا به په ننوتلو کې اجازه غواړي ترڅو داسې نه شي چې په کوم ځای

کې کومه ښځه په پوره پرده کې نه وي او دی ور ننوزي او که داسې ځای ته تر بلوغ وړاندې ننوزي نو خير دی .

## ۷. د شهوت نشت والی

هغه کس چې شهوت يې نه وي د عمر د زيات والي له امله ، د عنين توب له امله او يا د داسې بيماري له امله چې د جوړيدو تمه يې نه وي او يا يې په کومه بله وجه باندې شهوت ختم وي او بېرته د جوړيدو احتمال يې نه وي د هغوی په وړاندې په ښځه باندې پرده کول ضروري نه دي الله تعالی د دوی په اړه فرمايي :
سورة النور آية ۳۱
أَوِ التَّابِعِينَ غَيْرِ أُوْلِي الْإِرْبَةِ مِنَ الرِّجَالِ

ترجمه : يا هغه تابعانو ته چې دوی لره په ښځو کې حاجت نه وي

➢ دا کسان هم د محارمو په لست کې جمع کړي دي او په ښځه يې نه دي لازم کړي چې له دوی څخه د پرده وکوي .

امام مجاهد او قتادة رحمهما الله فرمايي : هغه چې په ښځو کې يې حاجت نه وي (نرښځوکی ، مخنث) د هغوی نه پرده کول ضروري نه وي لکن که هغه د ښځو په اړه په پټو خبرو پوهيږي نو بيا د هغوی نه هم پرده کول لازم دي حضرت عائشه رضی الله

عنها فرمايي : يو مخنث به د رسول الله ﷺ كور ته راتلو بيبيانو به ده ته د غير اولى الاربة (چې ښځو ته يې حاجت نه وي) په نظر كتل نو پرده به يې ترېنه نه كول يوه ورځ رسول الله ﷺ پداسې حالت كې را ننوتلو چې دې مخنث د كومې ښځې په اړه خبرې كولې او ويل يې : أنها إذا أقبلت أقبلت بأربع ، وإذا أدبرت أدبرت بثمان (دا چې كله تاته مخامخ راځي نو په څلورو سره راځي (څلور چاغ چاغ ډک ځايونه يې په بدن كې ښكاره كيږي) او كله چې تاته شا واړوي نو بيا په آتو (همداسې شيانو) شا اړوي ... رسول الله ﷺ چې دده دا خبره واورېده ويې فرمايل : ألا أرى هذا يعلم ما ههنا ، لا يدخلنّ عليكم هذا (زه دا نه وينم چې دا پدې خبرو پوهيږي دا دې بيا په تاسې نه را ننوزي يعني نور به تاسې له ده څخه پرده كوئ) نوددې نه وروسته به بيبيانو ورڅخه پرده كوله (ابو داود)

٨. بوډۍ ښځه

هغه بوډۍ ښځه چې په عمر كې دې حد ته ورسيږي چې په عادي حالت كې دومره زړې ښځې ته اشتها نه راځي په هغې باندې پرده كول فرض نه دي لكن بيا هم كه پرده وكوي ورته غوره خبره ده الله ➢ د هغوی په حق كې فرمايي كه دوی پرده ونه كوي

ګناه وربانديٍ نشته يعنې اجازه يې ورکړې ده او بيا يې ورته فرمايلي دي که ځان پاک وساتي (پرده وکوي) دا د دوى لپاره غوره خبره ده پدې اړه الله ➢ فرمايي :

سورة النور آية ٦٠

وَالْقَوَاعِدُ مِنَ النِّسَاء اللَّاتِي لَا يَرْجُونَ نِكَاحًا فَلَيْسَ عَلَيْهِنَّ جُنَاحٌ أَن يَضَعْنَ ثِيَابَهُنَّ غَيْرَ مُتَبَرِّجَاتٍ بِزِينَةٍ وَأَن يَسْتَعْفِفْنَ خَيْرٌ لَّهُنَّ وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ .

ترجمه : او زړې ناستې له هغو ښځو څخه چې اميد نه لري دوى د نکاح (په سبب د ډېر زوړ والي) پس نشته په دوى هېڅ ګناه چې کېږدي دوى (ظاهري) جامې خپلې (لکه چادري او لوى ټکرى) پدې حال کې چې دوى ښکاره کونکې نه وي د زينت خپل او دا چې دوى ځان وساتي (د لرې کولو د ظاهري جامو څخه هم) خير دى دوى ته او الله ➢ ښه اوريدونکى (د ټولو اقوالو) ښه عالم دى (په ټولو احوالو) .

## ۹. په احرام کې

کله چې ښځه په احرام کې وي هغه به دستکش نه په لاس کوي چې خپل لاسونه پټ کړي او نه به مخ په جامه کې پټوي رسول الله ☸ په يو حديث کې (مخکې هم تېر شو) فرمايي :

لا تتنقب المرأة المُحرمة ، ولا تلبس القفازين

ترجمه : ښځه چې په احرام کې وي هغه به نقاب نه آغوندي او نه به دستکش په لاس کوي .

لکن که چېرته یې اجنبي خلک په خوا کې تېرېدل او ددې ضرورت شو چې خپل مخ پټ کړي نو بیا به له سر نه په خپل مخ باندې کپړه را وځړوي لکه پدې اړه مخکې د حضرت عائشې رضی الله عنها یو حدیث تېر شو هغه مبارکه فرمايي :

كَانَ الرُّكْبَانُ يَمُرُّونَ بِنَا وَنَحْنُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُحْرِمَاتٌ فَإِذَا حَاذَوْا بِنَا سَدَلَتْ إِحْدَانَا جِلْبَابَهَا مِنْ رَأْسِهَا عَلَى وَجْهِهَا فَإِذَا جَاوَزُونَا كَشَفْنَاهُ ".

ترجمه : خلک به زمونږ په خوا کې تېرېدل مونږ به د رسول الله ﷺ سره په احرام کې وو کله به چې مونږ ته را نېږدې شول مونږ به د مخ د پټولو ټوټه له سر نه په مخ را ښکته کړه او کله به چې له مونږ څخه تېرشول بېرته به مو مخ ښکاره کړو .



# څلورمه خبره

## د حجاب صفتونه

هغه حجاب چې شځه يې د حجاب د حکم د پوره کولو په موخه د خپل ځان د پټولو لپاره استعمالوي په هغه کې بايد لاندينۍ صفتونه موجود وي .

### ١. ټول بدن به پټوي .

کوم حجاب چې د اسلامي پردې د حکم د پر ځای کولو په موخه آغوستل کيږي هغه بايد سر تر پښو ټول بدن پټ کړي چې هيڅ ځای ورڅخه ښکاره نه وي لکه مخکې چې آيت تېر شو .

سورة احزاب آية ٥٩

**يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُل لِّأَزْوَاجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَاء الْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِن جَلَابِيبِهِنَّ ذَلِكَ أَدْنَى أَن يُعْرَفْنَ فَلَا يُؤْذَيْنَ وَكَانَ اللَّهُ غَفُوراً رَّحِيماً**

ترجمه : ای نبي ووايه خپلو بيبيانو او لورانو او د مسلمانانو مېرمنو ته چې هغوی دی خپاره کړي په ټولو ځانونو خپلو له ټکريو (څادرونو) پړونو خپلو څخه دغه پټول د بدن نېږدې دي دې ته چې وبه پېژندل شي دوی (چې اصيلې دي او د عزت ښځې دي) بيا به دوی ته ضرر نه ورکول کيږي او الله ➢ ښه بښونکی او مهربان دی.

پدې آيت کې الله ➢ د ټول زينت (ټول بدن) د پټولو په اړه باندې حکم کړی دی چې دوی (ښځې) به يې د اجنبي سړي په مخ کې نه ښکاره کوي او هغه چې کله په خپله او يا د کوم کار کولو په وخت کې ښکاره شي د آيت په اخر کې الله ➢ فرمايلي دي چې الله ➢ ښه بښونکی او مهربان دی.

حضرت ابن عباس ❼ ددې آيت په تفسير کې فرمايي : أي لا يظهرن شيئا من الزينة للأجانب إلا ما لا يمكن إخفاؤه (مطلب يې دادی چې دوی به د خپل زينت څخه هېڅ شی پرديو سړيو ته نه ښکاره کوي مګر هغه چې پټول يې ممکن نه وي)

حضرت عبد الله بن مسعود ❼ فرمايي :

کالرداء والثياب يعني على ما كان يتعاطاه نساء العرب من المقنعة التي تجلل ثيابها وما يبدو من أسافل الثياب فلا حرج عليها فيه لأن هذا لا يمكن إخفاؤه

ترجمه : (هغه چې پټول يې ممکن نه وي) لکه څادر او جامې يې يعني هغه څه چې ښځې خپل ځان وربانديې پټ کړی دی (په کار خو ده چې هغه جامې يې هم له اجنبي خلکو څخه پټې کړی وای لکن د

هغې پټول ممکن نه دي) او یا هغه د جامو ښکتنی برخه چې ښکاره کیږي نو پدې ګناه نشته ځکه ددې پټول ممکن نه دي .

## ۲. حجاب باید زینت نه وي .

حجاب باید د زینت او ښائست پټونکي شی وي او باید حجاب پخپله یو زینت نه وي کله خو یوه ښځه داسې حجاب واغوندي چې دا پکې تر حجاب نه بغیر حالت څخه ډیره ښه ښکاره کیږي پدې صورت کې حجاب فایده نه بلکه تاوان کوي ځکه چې ﷲ
➢ کله په سورت النور کې ښځو ته فرمایي : ولا یبدین زینتهن (دوی به خپل زینت نه ښکاره کوي) ددې نه مطلب د جامو زینت هم دی یعني که دې داسې جامې آغوستې وي چې هغه ډیرې ښائسته وې هغه به هم چا ته نه ورښکاره کوي او هر هغه شی چې ښځې ته د سړي توجه ور جلب کوي په ښځه یې پټول ضروري دي او د همدې خبرې لپاره ﷲ ➢ ښځو ته فرمایلي دي :

سورة الاحزاب آية ٣٣

وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَى

ترجمه : او قرار ونيسي (اى ښځو) په كورونو خپلو كې او مه ښكاره كوئ ښائست خپل (پردو سړيو ته) په شان د اظهار (او ښائست) د جاهليت د ښځو ړومبنيو .

رسول الله ﷺ فرمايي :

ثَلاثَةٌ لا تَسْأَلْ عَنْهُمْ : رَجُلٌ فَارَقَ الْجَمَاعَةَ وَعَصَى إِمَامَهُ وَمَاتَ عَاصِيًا ، وَأَمَةٌ أَوْ عَبْدٌ أَبَقَ فَمَاتَ ، وَامْرَأَةٌ غَابَ عَنْهَا زَوْجُهَا ، قَدْ كَفَاهَا مُؤْنَةَ الدُّنْيَا فَتَبَرَّجَتْ بَعْدَهُ ، فَلا تَسْأَلْ عَنْهُمْ

ترجمه : د دريو كسانو په اړه خو بالكل پوښتنه مه كوه يو هغه كس چې له ډلې څخه جدا شي او د خپل امام نا فرماني وكوي او په همدې نا فرماني كې مړ شي هغه وينزه او غلام چې و تښتي او په همدې حالت كې مړ شي او هغه ښځه چې خاوند يې ترينه غيب شي او هغه ددې د دنيا د مشكلاتو لپاره بس شوى وي او د هغه د غياب نه وروسته دا ځان او خپل ښائست خلكو ته ښكاره كړي د دوى په اړه خو پوښتنه مه كوه .

## ٣. حجاب بايد شفاف نه وي

حجاب بايد له داسې رخت نه جوړ وي چې د ليدونكي نظر بدن ته نه ور پريږدي په هغه شي

باندې پرده کول چې هغه د لیدونکي نظر په پوره توګه نه منع کوي نه صحیح کیږي او نه د حجاب مطلب پوره کولی شي ځکه د حجاب لوی مطلب د اجنبي سړي او اجنبیې ښځې په مینځ کې د فتنې مخه نیول دي او پدې ډول حجاب سره خو د فتنې احتمال لا زیات قوي کیږي امام مسلم د حضرت ابي هریره ❼ په روایت یو حدیث نقل کړی دی چې رسول الله ☸ فرمایي : په آخره زمانه کې به زما په امت کې داسې ښځې وي چې هغوی جامې آغوستې او لوڅې وي په سرونو باندې یې (د وېښتانو) لکه د اوښانو د بوکامونو داسې شیان ولاړ وي په هغوی باندې لعنت دی په یو روایت کې وړیسې زیات کړل شوي دي دوی به جنت ته نه ننوزي او نه به دوی د جنت بوی محسوس کړي او د جنت بوی د دومره دومره مسافې څخه محسوس کیږي (رواه مسلم)

نو هغه ښځې چې د حجاب لپاره داسې ټوټه استعمال کړي چې هغه شفافه وي او د لیدونکی نظر ددې له بدن څخه نه منع کوي هغه ښځې دي چې جامې یې آغوستې وي لکن بیا هم لوڅې وي .

حضرت عبد البر رحمه الله فرمایي : د رسول الله ☸مطلب دادی چې هغه ښځې چې داسې رخت د حجاب لپاره استعمالوي چې د دوی بدن نشي پټولی په نوم سره دوی جامې آغوستې وي لکن په حقیقت کې لوڅې وي (تنویر الحوالک)

## ٤. حجاب باید ازاد وي ډېر تنګ نه وي

حجاب باید دومره تنګ نه وي چې د ښځې د جسم ترجماني وکوي ځکه ځو ځله مخکې تېر شول چې د ښځې د حجاب نه غرض صرف دا دی چې ښځه په داسې ډول ښکاره نشي چې یو اجنبي یې وګوري هغه په فتنه کې واقع شي او کله چې د ښځې حجاب داسې تنیګ وي او تنګ وي چې هر عضو (اندام) یې بېل بېل ښکاره کیږي نو دا حجاب تاوان کوي فایده نه کوي حضرت اسامة بن زید ❼ فرمایي : ماته رسول الله ﷺ یوه قبطیه (چپنه ډوله جامه) راکړه چې رسول الله ﷺ ته دحیة الکلبي تحفه کړې وه ما هغه خپلې مېرمن ته ورکړه رسول الله ﷺ راته وویل : ته هغه قبطیة ولې نه آغوندې؟ ما ورته وویل هغه ما خپلې مېرمن ته ورکړه رسول الله ﷺ راته وویل : هغې ته ووایه چې بل شی ورسره واغوندي زه ډارېږم که هغه دا قبطیه واغوندې نو د هغې د هډوکو لوی والی او وړوکوالی به پکې ښکاره شي (رواه احمد و بیهقي)

## ٥. په حجاب به عطر نه وي لګېدلي .

کومه ښځه چې د کور نه بهر وزي او حجاب آغوندي باید په هغه حجاب او هغه جامه باندې عطر نه

وي لګېدلې د يوې ښځې لپاره دا هم ناروا ده چې
ددې د عطرو ښه بوی په اجنبي سړي باندې ولګيږي
رسول الله ﷺ په متعددو ځايونو کې ښځې ددې څخه
منع کړي دي چې داسې عطر ولګوي چې بوی يې په
اجنبي سړيو باندې ولګيږي .

د حضرت ابي موسى الاشعري رضي الله عنه نه روايت دی رسول
الله ﷺ فرمايل :

أيما امرأة استعطرت فمرت على قوم ليجدوا
من ريحها فهي زانية

ترجمه : هغه ښځه چې عطر ولګوي بيا د يو قوم
په خوا کې تېره شي چې په هغه قوم باندې ددې د
عطرو بوی ولګيږي دا ښځه زانيه ده .

حضرت زينب الثقفية رضى الله عنها فرمايي رسول
الله ﷺ مونږ ته فرمايل :

إذا خرجت إحداكن إلى المسجد فلا تقربن
طيبا

ترجمه : کله چې ستاسې کومه يوه جومات ته وزي
هغه د عطرو ته نه ور نېږدې کيږي .

حضرت ابي هريره رضي الله عنه فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل
:

أيما امرأة أصابت بخورا فلا تشهد معنا
العشاء الآخرة

ترجمه : کومه ښځه چې عطر ولګوي هغه دې زمونږ سره د ماسخوتن په مانځه کې نه شریکیږي .

د حضرت موسی بن یسار ❼ نه روایت دی چې د حضرت ابي هریره ❼ سره یوه ښځه تېره شوه او د هغې نه د عطرو بوی تلو ده ورته وویل : اې امة الجبار (د جبار وینزې) ته جومات ته ځې؟

هغې وویل : هو

ده ورته ویل : او د جومات لپاره دې عطر لګولي دي؟

هغې ورته وویل : هو

ده ورته وویل : ځه وګرځه غسل وکوه (چې دا بوی بېرته درڅخه لاړ شي) ځکه ما درسول لله څخه آورېدلي دي هغه فرمایل :

ما من امرأة تخرج إلى المسجد تعصف ريحها فيقبل الله منها صلاة حتى ترجع إلى بيتها فتغتسل

ترجمه : هغه ښځه چې جومات ته وزي او د عطرو بوی ترېنه ځي ترڅو چې بېرته کورته تللې نه وي او غسل یې کړی نه وي مونځ یې نه قبلیږي.

پدې تولو حدیثونو کې او همدارنګه ګڼ شمېر نورو کې ښځه لدې څخه منع کړل شوېده چې دا په خپله جامه او یا خپل ځان باندې عطر ولګوي ځکه چې په اجنبي سړي باندې د ښځې د بدن د عطرو بوی ولګیږي د انسان په زړه کې شهواني حرکتونه

پیدا کوي ځینې علماوو پدې حکم کې ټول قیمتي لباسونه ، د اجنبي خلکو په وړاندې خپل زیورات ښکاره کول، او له سړیو سره بغیر د ضرورت نه په یو ځای کې کېناستل یو ځای کړي دي او ټول یې د همدې حدیثونو له امله حرام ګرځولي دي (فتح الباري)

## ٦. د سړي د جامې په ډول به نه وي.

د ښځې لباس به داسې لباس نه وي چې لکه د سړیو جامه داسې ښکاره کیږي په مختلفو ځایونو کې رسول الله ﷺ سړي ددې څخه منع کړي دي چې داسې حرکات ، سکنات او جامې وکوي چې د ښځو په ډول وي او ښځې یې منع کړي چې داسې جامې وکوي چې لکه د سړیو داسې وي د مثال په ډول د حضرت ابې هریره ؓ نه روایت دی هغه فرمایي :

لعن رسول الله ﷺ الرجل یلبس لبسة المرأة، والمرأة تلبس لبسة الرجل

ترجمه : رسول الله ﷺ لعنت لېږلی دی په هغه سړي باندې چې د ښځې جامې آغوندي او په هغه ښځه چې د سړي جامې آغوندي .

د حضرت عبد الله بن عمر ؓ نه روایت دی هغه فرمایي : ما له رسول الله ﷺ څخه واورېدل چې هغه فرمایل : لیس منا من تشبه بالرجال من

النساء، ولا من تشبه بالنساء من الرجال

يعني له مونږ څخه نه دی هغه کس چې ځان یې له نرو سره مشابه کړو او نه هغه ښځه چې ځان یې له سړیو سره مشابه کړو.

د حضرت عبدالله بن عباس ❼ نه روایت دی هغه فرمایي:

لعن النبي صلى الله عليه وسلم المخنثين من الرجال والمترجلات من النساء

ترجمه: لعنت لیږلی دی رسول الله ☸ په هغه سړیو باندې چې ځان له ښځو سره مشابه کوي او په هغه ښځو باندې چې ځان د سړیو سره مشابه کوي.

حضرت عبد الله بن عمر ❼ فرمایي رسول الله ☸فرمایل:

ثلاث لا يدخلون الجنة ولا ينظر الله إليهم يوم القيامة: العاق والديه والمرأة المترجلة المتشبهة بالرجال والديوث

ترجمه: درې کسان دي چې جنت ته به نه ننوزي او الله به د قیامت په ورځ (د رحمت په نظر) نه ورته ګوري ۱. هغه چې مور پلار عاق کړی وي ۲. هغه ښځه چې په جامو یا نورو کارونو کې ځان له سړیو سره مشابه کوي ۳. دووس (چې په خپل ناموس باندې غیرت نلري).

پدې ټولو حدیثونو کې همدارنګه په نورو کې په ښکاره ډول منع شوې چې ښځه به خپل ځان په لباس یا بل شي کې د سړیو سره نه مشابه کوي همدارنګه سړی به ځان د ښځو سره نه مشابه کوي د لمړي حدیث نه بغیر نور عام دي که په لباس کې وي او که په هرشي کې وي .

## ۷. د کفارو د لباس په ډول به نه وي .

کومه جامه چې مسلمانه ښځه د خپلې پردې د پر ځای کولو په موخه آغوندي هغه باید د کفارو د جامې په ډول نه وي ځکه اسلام په هرشي کې مونږ ته حکم کوي چې پداسې ډول یې وکوو چې په هغه کې د کفارو سره تشبیه را نشي په عباداتو کې ، د ځینو ورځو په لمانځلو کې ، په جامه کې ، په خوراک کې نو ځرنګه چې د ښځې حجاب هم یو ډول جامه ده نو مسلمانه ښځه به تر آخري حد پورې کوښښ کوي چې داسې حجاب وانه غوندي چې د کفارو سره پکې تشبیه راشي .

## ۸. مشهور او د شهرت لباس به نه وي.

پدې نیت به ښځه حجاب نه آغوندي چې حجاب یې د خلکو نظر ور جلب کړي د حضرت ابن عمر ❼ نه روایت دی هغه فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : من

لبس ثوب شهرة في الدنيا ألبسه الله ثوب مذلة يوم القيامة ثم ألهب فيه ناراً

ترجمه : چا چې واغوستلې د شهرت جامې په دنيا کې الله ➢ به د قيامت په ورځ د ذلت جامې ور واغوندي او بيا به يې په اور کې وسوزوي .

## ٩. تصويرونه به وربانديې نه وي.

اسلامي حجاب بايد د ژونديو شيانو تصويرونه ونه لري اسلام او د رسول الله ☸ مبارک احاديث هر وخت مونږ ته امر کوي او له مونږ نه غواړي چې له تصويرونو څخه لري اوسو او په کوم کور کې چې د ژونديو شيانو تصويرونه موجود وي د رحمت ملائکې هلته نه ورځي او مسلمانه ښځه هم چې حجاب آغوندي بايد هغه حجاب يې د ژونديو شيانو له تصويرونو څخه پاک وي.

# پنځمه خبره

## جینۍ به حجاب څه وخت شروع کوي؟

حجاب په جینۍ باندې هغه وخت فرض کیږي چې کله دا بلوغ ته ورسیږي او د بلوغ ته رسېدلو لپاره خو یا نښې دي لکه :

۱. احتلام (شیطاني خوب لیدل)

۲. د شرم ګاه په ساحه کې سخت ویښته را شنه کېدل.

۳. حیض راتلل

او یا که دا نښې ونه لېدل شوې نو ۱۵ کلنۍ ته رسېدل نو چې کله ددې نښو او یا د عمر له لحاظ نه په ښځه باندې حکم وشي چې دا بلوغ ته ورسېده نو ټول حکمونه ورباندې لازم شول او پدې شرعي حکمونو کې حجاب هم ورباندې لازم شو ددېنه به وروسته دا ښځه د حجاب او پردې نه بغیر بهر ته نه وزي او اجنبي سړي ته به خپل مخ نه ورښکاره کوي .

لکن هغه څوک چې ددې جینۍ متصرف وي هغه باید تر بلوغ وړاندې دې ته حکم وکوي چې هغه حجاب استعمال کړي ترڅو تر بلوغ څخه وړاندې د حجاب سره بلده شي نو تربلوغ وروسته چې حجاب ورباندې لازم شي نو ددې لپاره به کومه نوې

خبره نه وي .. لکه د ماشُه په حق کې چې رسول الله ﷺ فرمايي :

مروا أولادكم بالصلاة وهم أبناء سبع سنين , واضربوهم عليها وهم أبناء عشر , وفرقوا بينهم في المضاجع (رواه ابو داود)

ترجمه : خپلو ماشومانو ته په مانځه باندې امر وکوئ کله چې هغوی اوه کلنۍ ته ورسيږي او کله چې هغوی د لسو کلونو شي نو که مونځ نه کوي نو وهل ورکړئ او پدې عمر کې يې بسترې ور بيلې کړئ .

سره ددې چې په لس کلنۍ کې هم ماشوم چې بلوغ ته رسېدلی نه وي لکن رسول الله ﷺ حکم کړی دی که مونځ يې نه کول وهل ورکړئ ددې لپاره چې د لس کلنۍ څخه وروسته هر وخت ممکنه ده چې هغه بالغ شي نو بيا به په ده باندې مونځ فرض شي نو که دده زده نه وي او يا يې په کولو آميخته نه وي نو د هغه نه وروسته به يې دی زده کوي او بيا به وربانديې عادت کيږي نو پدې وخت کې به دده څخه مونځونه پاتې شي او دا ناروا دي .

# د ږانده څخه پرده

څرنګه چې سړی ددې څخه منع شوی چې پردی ښځې ته به نه ګوري او ښځه به هم پردي سړي ته موقع نه ورکوي چې دې ته وګوري په همدې ډول ښځې ته هم حکم شوی دی چې پردي سړي ته به نه ګوري حضرت ام سلمة رضی الله عنها فرمايي :

أنها كانت عند رسول الله صلى الله عليه وسلم وميمونة قالت فبينا نحن عنده أقبل ابن أم مكتوم فدخل عليه وذلك بعد ما أمرنا بالحجاب فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم احتجبا منه فقلت يا رسول الله أليس هو أعمى لا يبصرنا ولا يعرفنا فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم أفعمياوان أنتما ألستما تبصرانه. (رواه احمد و الترمذي)

ترجمه : دا او حضرت ميمونه د رسول الله ﷺ سره ناستې وې پدې وخت کې ړوند صحابي حضرت ابن ام مکتوم ❼ راغلو او دا هغه وخت وو چې مونږ ته ددينه وړاندې د حجاب حکم شوی وو رسول الله ﷺ وفرمايل : دده څخه پرده وکوئ .. ما ورته وويل : دا ړوند نه دی؟ هغه مو مونږ نه ويني

او مونږ نه پېژني رسول الله ﷺ راته وويل آيا تاسي ړندې ياست هغه نه وينئ؟ .

په پورتني حديث کې رسول الله ﷺ خپلو بيبيانو ته حکم کړی دی چې د ړانده سړي څخه پرده وکوي او په همدې حديث سره رسول الله ﷺ د خلکو ټولې هغه خبرې له مينځه وړي دي چې وايي زمونږ زړونه پاک دي يا وايي چې زړه پاک وي نو بيا پردې ته ضرورت نشته د رسول الله ﷺ د بيبيانو څخه پاک زړه د هيڅ ښځې نشي کېدلی او نه د حضرت ابن ا م مکتوم ❼ څخه پاک زړه د کوم سړي کېدلی شی چې رسول الله ﷺ د هغوی په مينځ کې پرده ضروري و ګڼله نو بيا هر چېرته ضروري ده .



پدې برخه کې ځینې هغه پوښتنې چې د مشهورو علماوو څخه شوې دي او هغوی ورته ځوابونه ورکړي دي د نورو فقهي کتابونو څخه د څه زیادت کولو سره یې لتاسې سره شریکوم .

## پرده نه ساتل او روژه نیول

**پوښتنه :** یوه ښځه ده چې هغه کار ته په لوڅ مخ ځي او په دفتر کې د اجنبي خلکو سره کیني ددې پښې لاسونه او مخ هغوی ته ښکاره کیږي او په همدې وخت کې دا ښځه روژه نیول غواړي ددې روژه صحیح کیږي؟

**ځواب:** دا ښځه باید اول په اسلامي پرده باندې دوام وکوي او بیا که دا روژه نیسي او یا بل شرعي عبادت کوي ددې د عبادت ثواب به څو چنده زیات وي لکن بیا هم که کومه ښځه پرده نه کوي روژه نیسي نو روژه یې صحیح ده لکن دا د پردې د نه کولو له امل ګنهګاره ده الله ➢ بیا بیا (لکه مخکې چې تېر شول) مسلمانې ښځې ته حکم کړی دی چې هغه باید په پرده کې اوسي او دا چې د هغه حکمونو څخه مخالفت کوي نو پدې مخالفت سره ګنهګاره ده او د پردې نشت والی د روژې د صحیح والي مخه نه نیسي .

# خاوند يې حجاب نه خوښوي

پوښتنه: يوه ښځه ده خپله د حجاب ساتنه کوي لکن خاوند يې حجاب نه خوښوي او که دا له خاوند سره په حجاب کې بهر ته راوزي نو خاوند يې نه غواړي چې له دې سره په يوه لاره لاړ شي او خاوند يې ددې پرده د خپل ځان لپار شرم ګڼي د دوی په مينځ کې هر وخت د حجاب له امله مشکلات وي دا څه وکوي د خپل خاوند متابعت وکوي او حجاب پريږدي او که نه حجاب خپل ټينګ وساتي او د خاوند پروا ونه کوي؟

ځواب: دا مېرمن بايد خپل خاوند ته نصحيت وکوي او هغه قانع کړي چې ددې سره ددې حجاب په ورين تندي ومني او د الله ➢ نه د ورته هدايت وغواړي او که بيا هم هغه ددې حجاب نه مني نو حجاب د الله ➢ حکم دی ښځه بايد وربانددې په هر صورت کې منګولې ولګوي او که هرڅو يې خاوند ترينه کرکه کوي دا بايد خپل حجاب وساتي او که دا د ځان لپاره تکليف ګڼي نو دا څه عجيبه خبره نه ده چې چا ته د اسلام له امله ضرر ورکول کيږي دا بايد د الله ➢ د رضا لپاره خپل حجاب وساتي او که دېته تکليف رسيږي نو دا به وربانددې صبر کوي الله ➢ به ورته اجر ورکړي د اسلام لپاره تکليفونه برداشت کول د مسلمان سره

ښايي پدې اړه د صحابه وو او صحابياتو ژوند د مثالونو څخه ډک دی هغوی ته به د اسلام له امله ډير تکليفونه ورکول کېدل او دوی به ورباندې صبر کاوه رسول الله ﷺ فرمايي :

فإن النار حُفت بالشهوات والجنة حفت بالمكاره

ترجمه : بېشکه اور په شهواتو کې پېچل شوی دی او جنت په مشکلاتو او سختيو کې پېچل شوی دی (د حاصلولو لپاره به يې انسان تر سختيو تيريږي بيا به جنت ته رسيږي)



# په شرعي حجاب پورې مسخرې کول کفر دی

پوښتنه: زمونږ په معاشره کې ځینې ښځې په مکمله توګه داسې پرده کوي چې ټول بدن پټوي او لاسونو ته هم دستکش ور آغوندي او ځینې نور خلک بیا د دوی په حجاب پورې مسخرې کوي او وایي چې دا د شا ته پاتې ښځو نښه ده ددې مسخره کونکو حکم څه دی؟ (پوښتنه د اللجنة الدائمة في الفتاوی الجامعة للمرأة المسلمة (السعودیة) څخه شویده او دوی ورته لاندې ځواب ویلی دی)

**ځواب:** هغه کسان چې په یو مسلمان او مسلمانه پسې ددې امله مسخرې کوي چې دوی په شریعت باندې منګولې لګولې وي نو دا کفر دی دا برابره خبره ده که د حجاب له امله دا مسخرې وي او که د کوم بل شرعي حکم له امله وي .

په غزوه تبوک کې یو کس وویل : دا زمونږ قران لوستونکي خلک داسې غټ خیټې ، درواغ ویونکي ، بې کاره او په جنګ کې بې زړه او ډارېدونکي وي په مجلس کې یو کس ورته وویل : درواغ د وویل ته منافق یې زه به ستا دا خبرې رسول الله ☸ ته وکوم کله چې رسول الله ☸ ددې واقعې نه خبر شو دی راغلو رسول الله ☸ ته یې وویل : مونږ هسې ټوکې کولې او وخت مو تېرولو رسول الله ☸ ورته

وويل : ستاسې د ټوکو لپاره اوس الله ، رسول او قران پاتې شو؟ پدې وخت کې آيتونه نازل شول :
سورة التوبة آية ٦٥ او ٦٦

وَ لَئِنۡ سَاَلۡتَهُمۡ لَيَقُوۡلُنَّ اِنَّمَا كُنَّا نَخُوۡضُ وَ نَلۡعَبُ ؕ قُلۡ اَ بِاللّٰهِ وَ اٰيٰتِهٖ وَ رَسُوۡلِهٖ كُنۡتُمۡ تَسۡتَهۡزِءُوۡنَ (۶۵)

ترجمه : کله چې ته له دوی څخه پوښتنه وکوې نو دوی وايي مونږ هسې ساعت تېرولو او ټوکې مو کولې نو ته ورته ووايه چې آيا په الله ➢ ، د هغه په آيتونو او د هغه په رسول پورې تاسې ټوکې کولې .

لَا تَعۡتَذِرُوۡا قَدۡ كَفَرۡتُمۡ بَعۡدَ اِيۡمَانِكُمۡ ؕ اِنۡ نَّعۡفُ عَنۡ طَآئِفَةٍ مِّنۡكُمۡ نُعَذِّبۡ طَآئِفَةًۢ بِاَنَّهُمۡ كَانُوۡا مُجۡرِمِيۡنَ (۶۶٪)

ترجمه : اوس عذرونه مه وړاندې کوئ تاسې له ايمان څخه بېرته کافران شوي ياست که په تاسې کې مونږ کومه ډله معاف کوو نو بلې ډلې ته به سزا ورکوو ځکه هغوی مجرمان دي .

نو په پورتنۍ واقعه کې هغه منافق صرف په مومنانو پورې مسخرې کړې وې نو الله ➢ په مومنانو پورې مسخري دا په ا لله ، په قران او په پيغمبر پورې مسخرې و ګڼلې او دېته يې کفر وويلو .

نو هرڅوک چې په مسلمانانو پورې ددې امله مسخرې وکوي چې هغوی کوم يو د شريعت حکم عملي

کړی وي او یا یې په عامه توګه شریعت عملي کړی دی نو هغوی ددې آیت له مخې له اسلام څخه وتلي دي (اللجنة الدائمة في الفتاوی الجامعة للمرأة المسلمة ج/3 ص 813 )

## د کورنۍ غړي یې حجاب ته نه پرېږدي

پوښتنه: یوه ښځه ده چې دهغې خپله خوښه ده چې باید په حجاب کې وي لکن د کورنۍ نور غړي یې هغه حجاب ته نه پرېږدي او په لنډو شپو کې یې واده را روان دی خاوند یې غواړي چې واده یې په هوټل کې وکوي او دا مجبوره ده چې هلته به خپل مخ ټولو د واده حاضرینو ته ور ښکاره کوي او هغه لباس به آغوندي چې کوم عامې ناوې ګانې آغوندي چې مخ یې لوڅ وي آیا د کورنۍ د فشار له امله دې ته روا دي چې تر خپل حجاب تېره شي؟

ځواب : دا پاکه ښځه چې په داسې کورنۍ کې ژوند کوي چې هغوی د پردې ساتونکي نه دي لکن الله ➢ په خپل فضل ددې زړه ته رڼا ور ننه ایستلې ده باید کوښښ وکوي چې خپل د کورنۍ غړي پدې خبره پوه کړي چې ددې پرده تر هرڅه ضروري ده او که بیا هم هغوی ددې سره قناعت ونه کوي دا باید خپل حجاب وساتي او که مور پلار یا یې

خاوند خفه کيږي دا څه لويه خبره نه ده هروخت چې په بد عمله کورنۍ کې صالح څوک پيدا شي نو خپلوان يې تر هرچا وړاندې دښمني کوي او که اوس دا خلک دې ته تکليف رسوي دا به وربانديې صبر کوي لکن کله به هم تر خپل حجاب نه تيريږي او په ياد به لري چې :

لا طاعة للمخلوق في معصية الخالق

ترجمه : د خالق په نا فرماني کې د مخلقو اطاعت نشته (يعني په کوم ځای کې چې د خالق او د مخلوق رضا سره ټکر شي نو انسان به کوښښ کوي چې هغه کار وکوي په کوم چې خالق رضا کيږي او مخلقو به پريږدي چې خفه شي)

# له بد عمله محرم نه پرده

**پوښتنه:** د يوې ښځې ماما يا بل محرم ډېر زيات بد عمل دی او يا يهودي ، نصراني (غير مسلم) دی دا به ترينه پرده کوي؟

**ځواب:** محارم چې هرڅومره بد عمل شي بيا هم د هغوی څخه پرده نشته په هغه وخت کې چې رسول الله ﷺ ژندی وو نو ډېر خلک داسې وو چې دوی به مسلمانان وو او ځينې محارم به يې کافران وو لکن رسول الله ﷺ هېڅ کومې ښځې ته نه وو ويلي چې د خپل کافر محرم څخه د مخ پټ کړي او يا د له هغې څخه پرده وکوي لکن ښځه چې د محرم څخه پرده نه کوي هغه محرم بايد د امانت خاوند وي که هغه مسلمان وي او که کافر وي که صالح وي او که بد عمل وي او که په هغه کې امانت نه وي د مثال په ډول که ښځه له هغه سړي سره کينې دا سړی ځي بل چا ته ددې د ښائست او شکل په اړه خبرې کوي او ددې د ښائست پټ رازونه اجنبي خلکو ته او خپلو ملګرو ته ښکاره کوي نو ښځه کولی شي له داسې کس نه پرده وکوي که دا کس کافر وي او که مسلمان وي. (" **فتاوى المرأة المسلمة** " ( 1 / 532 ، 533 ) )

# په کفري ملک کې پرده

**پوښتنه :** ځینې خلک دي چې هغوی په اسلامي ملکونو کې وي نو په مکمله پرده کې وي صرف د محارمو څخه پرده نه کوي نور له هرچا څخه پرده کوي لکن چې کله خارج ملک ته ځي د مثال په ډول اروپایي ملکونو ته ځي نو بیا په هوایي میدان کې ټولې هغه جامې پریږدي چې د پردې لپاره به یې استعمالولې او ځینې وایي چې د مخ پټول ضروري نه دي او ځینې یې وایي په خارج کې څوک چا ته نه ګوري ددې خبرو څه حکم دی؟

**ځواب :** په مسلمانه ښځه باندې الله ➢ حجاب فرض کړی دی او دا فرضیت د دنیا په هر کونج کې وربانديې ثابت دی او که اجنبي سړي کفار وي او که مسلمانان وي په هر صورت کې حجاب او پرده ترینه واجب ده بلکه د مسلمان سړي نه چې پرده کول فرض دي نو د کافر سړي څخه پرده کول تردې هم زیات سخت فرض دي او پرده ترینه زیاته ضروري ده ځکه د مسلمان سړي سره خو ایمان شته کله خو یې ایمان هم له کوم بد کار څخه منع کولی شي د کافر سره خو هیڅ ډول مانع نشته او که څوک وایي چې د مخ پټول فرض نه دي پدې اړه لږ وړاندې (په دوهمه خبره کې) ٣٦ دلیلونه تېر شول چې له هغه هر یو نه دا ثابتیږي چې د مخ پټول فرض دي او پاتې شوه دا خبره چې په خارج

کې څوک چا ته نه ګوري دا صرف بکواس دی څومره بد کارونه چې په خارج کې کیږي ، څومره په بد نظر خلک چې په خارج کې ګوري په اسلامي ملکونو کې یې ساری نه لیدل کیږي نو په هر صورت د مسلمان سړي لور د مسلمانې کورنۍ ښځه چې کفري ملکونو ته ځي باید د مسلمان لور پاتې شي او همداسې په پرده کې ژوند وکوي لکه څنګه یې چې قران او اسلام غواړي .

## د حجاب له امله په امتحان کې ناکامېدل

**پوښتنه :** د لوړو زده کړو شاګرده ده پداسې ځای کې درس وايي چې هلته د شاګردانو خپل یونیفورم شته په هغې کې حجاب وجود نلري او هر شاګرد باید هماغه لباس استعمال کړي او که یوه ښځه هلته د حجاب ساتنه کوي نو هغه ناکامه کول کیږي دا څه وکوي؟

**ځواب:** لکه مخکې چې تېر شول حجاب کول فرض دي الله فرض کړي دي او د خالق اطاعت په هر صورت کې فرض دی د خلکو د غوښتنې لپاره د الله حکم نه پاتې کیږي او ښځې ته په هېڅ صورت کې نه دي روا چې تر خپل حجاب څخه د خپلو زده کړو او یا د امتحان د نمرو لپاره تېره شي حتی که دا ښځه له دې خپلو درسونو څخه ویستل کیږي

بيا هم بايد په خپل حجاب ټينګه پاتې شي او پدې مشكلاتو ددې امله صبر وكوي چې د الله ➢ رضا په همدې كې ده او كه پدې سره ددې د ژوند سهولتونه په مشكلاتو بدليږي بايد وربانديې صبر وكوي او په الله ➢ باندې په ژوند كې توكل وكوي الله ➢ فرمايي :

سورة الطلاق آية ٢ او ٣

**وَمَنْ يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَلْ لَهُ مَخْرَجاً. وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لا يَحْتَسِبُ وَمَنْ يَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ فَهُوَ حَسْبُهُ إِنَّ اللَّهَ بَالِغُ أَمْرِهِ قَدْ جَعَلَ اللَّهُ لِكُلِّ شَيْءٍ قَدْراً**

ترجمه : او هغه كسان چې له الله ➢ څخه ډاريږي او ددې امله ځان وساتي له ګناهونو څخه الله ➢ به ده ته يوه لاره د وتلو پيدا كړي او هغه څوك چې توكل وكوي په الله ➢ باندې نو دغه (الله) بس او كافي دى ده لره (په دواړو جهانونو كې) بېشكه الله ➢ رسيدونكى دى خپل كار ته په تحقيق سره الله ➢ د هرشي لپاره يوه اندازه ګرځولې ده .

رسول الله ☸ فرمايي :

إن من ورائكم زمان صبر للمتمسك فيه أجر خمسين شهيدا منكم

ترجمه : بېشکه ستاسې نه وروسته داسې يو وخت را روان دی چې هغه د صبر وخت دی په هغه وخت کې چې څوک په (يو سنت) يا په شريعت منګولې ولګوي ستاسې د پنځوسو شهيدانو اجر به الله ➢ ورکوي (رواه الطبراني)

## په حجاب کې تور رنګ ضروري نه دی

پوښتنه : په اسلامي حجاب کې تور رنګ ضروري دی؟

ځواب : د حجاب ضروري صفات لږ وړاندې تېر شول د هغه صفتونو څخه بغير نور څه پکې ضروري نشته تور رنګ يې ضروري نه دی لکن که په کوم ځای کې يو رنګ تر نارينه وو پورې خاص وي ښځې به هغه جامه نه کوي او دا حجاب به پخپله دومره ښائسته نه وي چې د کتونکو توجه ځان ته جلب کړي ځينې حجابونه چې قيمتي کارونه وربانديې شوې وي ، غمي پکې لګول شوي وي او داسې نور کارونه پکې شوې وي شريعت يې د استعمال اجازه نه ورکوي ځکه حجاب ددې لپاره وي چې د ښځې د بدن او جامو ښائست پټ کړي نه دا چې لا يې پسې ښائسته کړي .

# د خور د خاوند نه پرده

**پوښتنه :** د ښځې د خور خاوند (آوښی) دښځې کور ته بې اجازې راځي او ددې نه پرده کول ممکن نه دي ښځه وايي چې ماته لکه ورور داسې ښکاره کيږي او سړی هم وايي چې دا ماته لکه خپله خور داسې ده او ددوی پرده اوس ددې امله هم نا ممکنه ده چې د عام رواج څخه مخالفت دی د دوی د پردې څه حکم دی؟ او دوی کله وايي چې زمونږ زړونه صفا دي د دوی دا خبره په شريعت کې څه قدر لري؟

**ځواب :** د پردې په اړه د خبرو په شروع کې (لمړی خبره) يو عنوان وو هلته مونږ ۱۳ کسان ياد کړل چې په ښځه باندې فرض نه دي له دوی څخه پرده وکوي پاتې نور له ټولو کسانو څخه پرده کول فرض دي د خور خاوند (اوښی) د ښځې له هغه کسانو څخه دی چې يو وخت ددې ښځې نکاح ورسره صحيح کيږي او د ښځې محارم د هغې خاوند او هغه کسان وي چې بالکل يې نکاح ورسره نه کيږي نو په هر صورت ښځه بايد له خپل اوښي (د خور له خاوند) څخه پرده وکوي پاتې شوه د رواجونو خبره مسلمان ته ښايي چې کله په کوم رواج باندې عمل کوي نو اول هغه رواج د قران کريم او د احاديثو سره مقايسه کړي که چېرته د اسلام سره برابر وي نو بيا بايد د رواج په ډول

نه د یو اسلامي حکم په ډول ورباندئ عمل وکوي او که چېرته د اسلام سره ټکر وي باید تر پښو یې لاندې کړي او په اسلام باندې عمل وکوي نو که په دې اړه دده څخه نور خپلوان خپه کیږي چې رواج یې پرېښود او یا په ده پسې خبرې کوي او یا دده سره تعلق خرابوي او یا دده کور ته تلل راتلل دروي نو مسلمان باید د الله ➢ نوم واخلي او ټولو کارونو ته تیار شي مخکې تېر شول چې رسول الله ☸ فرمایل : د خلکو په اطاعت کې د الله ➢ گناه کول نشته دا کم عقلي ده چې انسان الله ➢ خفه کوي او رواج ددې لپاره ساتي چې خپلوان مې خفه نشي .

پاتې شوه دا خبره چې زړونه صفا دي او یا دا چې دوی یو بل ته د ورور او خور په نظر گوري په اسلام کې ددې خبرو هېڅ ډول قیمت او قدر نشته هېڅ ناروا ورباندئ نه روا کیږي خالي بکواس دی ددې ارزښت هم نلري چې څوک یې آورېدلو ته توجه وکوي .



# د نارينه استاذ نه پرده

**پوښتنه :** په درس کې استاذ نارينه دی او ښځو ته درس وايي او ښځې لوڅ مخ استاذ ته کيني ددې څه حکم دی؟

**ځواب :** لږ مخکې مونږ هغه صورتونه تېر کړل چې هلته ښځه له خپل مخ نه پرده لرې کولی شي د مثال په ډول د ډاکټر په مخ کې د ګواهي لپاره د قضا او داسې نورو صورتونو په حالت کې او هلته تاسې وليدل چې استاذ نه وو نو په هېڅ صورت ښځې ته روا نه دي چې د خپل استاذ په مخ کې خپل مخ ښکاره کړي که هغه استاذ هرڅومره بزرګ سړی وي ، تقوی دار وي په هېڅ صورت کې د ديني او عصري علومو شاګردې ته روا نه دي چې هغه ته خپل مخ ښکاره کړي .



# ښځه پرده نه کوي خاوند ورسره څه وکوي؟

پوښتنه : د يو سړي مېرمن ده د پردې ساتنه نه کوي د ډېر نصيحت وروسته هم هغه په پرده کې نه شوه اوس ورسره څه وکوي؟

ځواب : له يوه پلوه پرده په ښځه باندې فرض ده او له بله پلوه په ښځه باندې لازم دي چې د خپل خاوند متابعت وکوي الله ➢ فرمايي : چې سړي په ښځو باندې مسلط کړل شوي دي (سورة النساء) او د سړي په ښځه باندې دا حق دی چې ترڅو د شريعت په خلاف کوم کار امر ورته نه کوي بايد ښځه يې متابعت وکوي لکن کومه ښځه يې چې نه کوي تر هرڅه د مخه انسان بايد د خپلې مېرمن سره نرمي وکوي او کوښښ وکوي چې په هر ډول خبر باندې يې له نرمۍ سره پوه کړي او که چېرته په نرمۍ سره نه کيږي نو بيا يې الله ➢ يو حل ښودلی دی بيا به په هغه باندې عمل ورسره وشي الله ➢ فرمايي :

سورة النساء آية ٣٤

الرِّجَالُ قَوَّامُونَ عَلَى النِّسَاء بِمَا فَضَّلَ اللّهُ بَعْضَهُمْ عَلَى بَعْضٍ وَبِمَا أَنفَقُواْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ فَالصَّالِحَاتُ قَانِتَاتٌ حَافِظَاتٌ لِّلْغَيْبِ بِمَا حَفِظَ اللّهُ وَاللاَّتِي تَخَافُونَ نُشُوزَهُنَّ فَعِظُوهُنَّ وَاهْجُرُوهُنَّ فِي

الْمَضَاجِعِ وَاضْرِبُوهُنَّ فَإِنْ أَطَعْنَكُمْ فَلاَ تَبْغُواْ عَلَيْهِنَّ سَبِيلاً إِنَّ اللّهَ كَانَ عَلِيًّا كَبِيرًا.

ترجمه :سړي په ښځو باندې مسلط شوي دي ددې امله چې الله ① ځينې په ځينو باندې غوره پيدا كړي دي او همدارنگه ددې امله چې هغوى خپل مالونه مصرف كوي پس نېكې ښځې د خاوند په امر تلونكې وي او د خاوند په غياب كې د هغه د مال او د خپل عزت ساتونكې وي او هغه چې تاسې وربانديې پوه شئ چې هغوى سركشي كوي نو نصيحت ورته وكوئ كه په نصيحت سمې نه شوې نو په بستره كې ترينه جدا شئ وهل وركړئ كه يې ستاسې متابعت وكولو نو بيا ورسره د جنگ لپاره بهانه مه لټوئ بېشكه الله ① تر هرچا لوړ او لوى ذات دى .

رسول الله ☸ د نرمۍ په اړه فرمايي : إِنَّ الرِّفْقَ لا يَكُونُ فِي شَيْءٍ إِلا زَانَهُ ، وَلا يُنْزَعُ مِنْ شَيْءٍ إِلا شَانَهُ ) رواه مسلم

ترجمه : نرمي چې له هرشي سره ملگرې شي هغه شى ښائسته كړي او له هرشي څخه چې لرې كړل شي هغه شى عيبجن كړي .

ددې امله خاوند ته ښايي چې تر خپلې وسې پورې بايد له خپلې مېرمن سره له نرمي څخه كار واخلي .

# د ښځې لپاره د پطلون حکم

پوښتنه : یوه مسلمانه ښځه ده هغه چې له کور نه وزي نو پطلون آغوندي حکم يې څه دی؟ آيا د مسلمانې ښځې لپاره پطلون آغوستل روا دي؟

ځواب : هغه لباس چې ښځې يې پداسې وخت کې آغوندي چې دا پکې د اجنبي سړي په وړاندې کيني پاڅيږي نو په هغه لباس کې آته شرطونه دي :

١. چې ټول بدن پټوي د لاسونو او مخ په شمول (دليلونه يې تېر شول)

٢. داسې تنګ نه وي چې د بدن د اندامونو حجم پکې ښکاره شي .

٣. داسې نازک نه وي چې د انسان بدن ترېنه ښکاره شي .

٤. خپله دومره ښائسته نه وي چې د ليدونکې نظر را کش کړي.

٥. داسې عطر به وربانديې نه وي لګېدلې چې په خلکو يې بوی ولګيږي.

٦. د سړيو د جامو سره يې تشبيه نه وي.

٧. د شهرت جامه نه وي .

٨. د کفارو د جامو په ډول نه وي .

نو ددې شرطونو له امله ښځه په پطلون او لنډه جامه کې د دريو خبرو له امله نشي راوتلی .

لمړی دا چې په هغې کې د ښځې پښه په ښکاره ډول سره معلومیږي چې نری ده او که ډبله ده او که څنګه .

دوهم دا چې د پطلون په آغوستلو کې د سړیو سره مشابهت دی .

دریم : پطلون په اصل کې د کفارو د ښځو لباس دی پدې کې د کفارو سره تشبیه ده چې په متعدد ځله ترینه نهی او منع تیره شوه .

د سعودي د مشهور عالم شیخ ابن عثیمین رحمه الله نه چې پدې اړه پوښتنه وشوه هغه وفرمایل :

زما نظر دادی چې هغه جامې چې زمونږ ملکونو ته له یو او بل ځای نه راځي اکثر یې زمونږ د اسلامي جامعې سره مناسبت نلري باید مسلمانان یې وانه غوندي چې ځینې یې ډېرې لنډې وي او ځینې یې دومره تنګې وې چې د آغوستونکې د هر اندام ترجماني کوي او یا سپکې جامې وي چې بدن په سمه توګه نشي پټولی د همدې ډلې نه پطلون دی ځکه دا چې کله ښځه واغوندي نو د ښځې د پښې حجم له ورایه پکې ښکاره کیږي همدارنګه د هغې ګیډه ملا او داسې نور نو هغه څوک چې یې واغوندي تردې حدیث لاندې راځي چې رسول الله ﷺ فرمایي: کاسیات العاریات (په نوم سره په جامه کې او په حقیقت کې لوڅې)

او که چېرته ښځه داسې حجاب آغوندي چې ددې ټول بدن پټوي او تر هغه حجاب څخه یې لاندې پطلون آغوستی وي نو بیا هېڅ ناروا والی پکې نشته هغه ساحه خو هسې هم نه ښکاره کیږي لکن پدې شرط چې حجاب به همداسې حجاب وي چې تر پښو لاندې ساحه نه ښکاره کیږي .

## خسر خېل بې پردې دي خاوند خپله ښځه نه پرېږدي چې هلته لاړه شي

پوښتنه : د یو سړي ښځه له داسې کورنۍ څخه ده چې هغوی په خپل کور کې پرده نه کوي او نه یې د پردې کولو عادت وي هلته د هغوی ټول نا محرم خپلوان لکه د دوی د ترونو او ماماګانو زامن کور ته بغیر د اجازې نه راځي اوس یې خاوند ښځې ته د بې پردګي له امله اجازه نه ورکوي چې د پلار کور ته لاړه شي آیا خاوند پدې صورت کې په حقه دی؟

ځواب : په ښځه باندې پرده ساتل د الله حق دی او خاوند هم کوښښ کوي چې ښځه یې د الله حق وساتي او د الله د حدونو څخه مخالفت ونه کوي نو په کوم ځای کې چې د الله حق د ښځې تر پښو لاندې کیږي هلته خاوند حق لري ښځه له هغه ځای څخه را منع کړي او که د ښځې کورنۍ اوس ښځه بېول غواړي نو خاوند یې ورڅخه را

ګرځولی شي اول د هغوی د خپل کور په ماحول کې د پردي شرعي احکام یقیني کړي بیا د دا ښځه بوزي بیا یې خاوند هم نشي را ګرځولی .

## هلک دعوه کوي چې دا ښځه زما رضاعي خور ده

**پوښتنه :** یو هلک دعوه وکوله چې فلانۍ جینۍ دده رضاعي خور ده اوس هغه ددې جینۍ سره کېناستلی شي آیا په جینۍ باندې ضروري نه ده چې له هغه څخه پرده وکوي؟

**ځواب :** په تشه دعوه باندې حکم نه کیږي لکن کله چې د هغه ښځې نه پوښتنه وشي چې آیا رښتیا تا دې دواړو ته شودې ورکړې دي او پداسې نورو لارو دا ثابته شي چې په رښتیا دا هلک او جینۍ سره رضاعي خور او ورور دي نو بیا پرده کول ضروري نه دي لکن که دا هلک بد عمل ، بې لارې او د اعتماد او اعتبار وړ نه وو نو بیا به جینۍ ورڅخه پرده کوي او پداسې صورت کې چې ښځه وربانددې د خپل عزت په اړه ډاریږي هغه هلک بد عمله او بې اعتباره وي نو د اصلي نسبي ورور نه هم پرده کولی شي .

## ښځه وایي کشر لېور مې زما تر سترګو لاندې لوی شو..

**پوښتنه :** یوه ښځه وایي چې زما لېور زما تر سترګو لاندې لوی شوی دی زه دده څخه پرده نه کوم آیا دا خبره چې یو ماشوم د یوې ښځې په مخ کې لوی شي بیا به له هغه څخه پرده نه کوي په شریعت کې څه قدر لري؟

**ځواب :** رسول الله ﷺ یو وخت فرمایل : ځان وساتئ لدې څخه چې په کور کې په نا محرمو ښځو ور ننوزي نو صحابه وو د لېور په اړه پوښتنه وکوله رسول الله ﷺ ورته وویل لېور خو مرګ دی .

د رسول الله ﷺ مطلب دا وو چې لېور خو ډېر خطرناک دی ځکه هغه د ورور کور ته بغیر د اجازې ننوزي او چې کله په کور کې د ننه ګرځي نو هېڅوک اواز نه کوي چې دا سړی دلته څه کوي نو که چېرته دا د ورور له ښځې سره په یو ځای کېني شیطان ډېر په اسانه سره د دوی زړونه خرابولی شي او د دوی په زړونو کې شیطاني فکرونه او نظریات ور اچولی شي نو ددې امله د لېور څخه د ټول ځان پټ ساتل فرض دي پاتې شوه دا خبره چې زما لېور لما سره ماشوم را لوی شوی دی په شریعت کې دې خبرې ته هېڅ قدر او قېمت نشته دا خبره په ځای ده چې ترڅو پورې لېور بالغ شوی نه وي پرده کول ترې ضروري نه دي او چې کله هغه بالغ شي نو د ورور ښځه به

په مکمله توګه ترېنه پرده کوي دا خبرې د ښځې په دماغو او زړه کې شیطان ور اچوي چې دا ددې سره په یو ځای لوی شو او ددې تر سترګو لاندې لوی شو .



## پردي سړي ته لاس ورکول

**پوښتنه :** په ځينې دفترونو کې ښځينه او نارينه په يو ځای کار کوي ځينې ښځې داسې دي چې هغوی هر سحر راځي نو د خپلو مشرانو او د کار د ځای د نورو شريکانوسره په لاس ستړي مشي کوي او هغوی ته لاس ورکوي د اسلام له نظره ددې لاس ورکولو څه حکم دی؟

**ځواب :** دا مصافحه (لاس ورکول) د يو سړي يوې ښځې ته په دوه ډوله دي :

### ۱. د محارمو په مينځ کې .

لکه پلار لور ته لاس ورکوي او يا ورور خور ته اوداسې نور نو دا بالاتفاق روا دي د ابي داود او ترمذي په حديثونو کې نقل شوي دي چې رسول الله ﷺ به کله د حضرت فاطمې رضی الله عنه سره ستړي مشي کوله هغه به يې مچي کوله او رسول الله ﷺ به چې کله د حضرت فاطمې رضی الله عنها کور ته ورغلو نو هغې به هم رسول الله ﷺ مچي کولو .

## ۲. د پردیو خلکو په مینځ کې .

په هغه صورت کې چې ښځه داسې زړه شوې وي چې په عادي حالت کې ځوک ورته د شهوت په نظر نه ګوري او نه د انسان په زړه کې څه ورته را تیریږي نو د هغې سره په لاس لګولو کې چې څه د فتنې ډار نه وي نو څه ګناه نشته سره ددې چې د امام شافعي رحمه الله په مذهب که هرڅو ورته اشتها نه راځي بیا یې هم مصافحه او لاس ورکول ممنوع ګڼلي دي ځکه هغوی فرمايي چې آیتونه ټول په عامه توګه خبره کوي او په دلائلو کې د ځوانې او زړې فرق نه دی شوی .

او که چېرته ښځه ځوانه وي نو د ځلورو واړو مذهبونو په اتفاق یې سړي ته لاسونه ورکول ناروا دي او د امام احمد ابن حنبل صاحب رحمه الله په مذهب که دا لاس ورکول د پردې نه بلې خواته وي یعني په لاس ورته څه تاو کړي بیا هم ناروا دي .

د حضرت معقل ابن یسار ❼ نه روایت دی رسول الله ☸ فرمايي :

ستاسې د یو په سر کې چې د وسپنې تار ننوزي دا ورته ددې څخه ښه ده چې یوه اجنبي ښځه مس کړي . (رواه الطبراني)

امام نووي رحمه الله فرمايي : د پردۍ ښځې چې کومو ځايونو ته نظر کول نا روا دي نو د هغې سره لاس لګول هم نا روا دي بلکه د لاس لګول تر نظر کولو (کتلو) څخه لويه خبره ده ځکه هغه کس چې چاته د نکاح پيغام ور لېږل غواړي هغه ته روا دي چې هغه ښځه ووينې او دا ورته نه دي روا چې د هغې د لاس سره او يا مخ سره لاس ولګوي .

حضرت عائشه رضی الله عنها فرمايي : والله ما أخذ رسول الله صلى الله عليه وسلم النساء قط إلا بما أمره الله تعالى، وما مست كف رسول الله صلى الله عليه وسلم كف امرأة قط، وكان يقول لهن إذا أخذ عليهن البيعة: "قد بايعتكن كلاما".

ترجمه : زما د قسم وي رسول الله ﷺ د ښځې لاس کله هم په لاس کې نه دی اخستی مګر هغه چې الله ورته امر کړی وو او د رسول الله ﷺ لاس کله هم د ښځې لاس نه دی مس کړی او کله به يې چې له هغوی نه بيعت اخستو نو ورته ويل به يې ما ستاسې ټولو سره بيعت وکولو .

په بيعة الرضوان کې کله چې رسول الله ﷺ د ټول مسلمانانو نارينه او ښځو سره بيعت کولو نو مسلمانانې راغلې هغوی هم رسول الله ﷺ ته لاس

ورکول غوښتل او د رسول الله ﷺ سره یې بیعت کول غوښتل لکن رسول الله ﷺ هغوی ته له لاس ورکولو څخه انکار وکولو .
نو په هیڅ صورت کې د اجنبي سړي او اجنبي ښځې یو بل ته لاس ورکول نه دي روا دا د شریعت خلاف کار دی او څوک چې پداسې ماحول کې خپله ښځه لور او خور کار کولو ته پریږدي الله ➢ د ورته هدایت وکوي رسول الله ﷺ فرمایي : چې دیوث (هغه کس چې د خپل اهل په اړه غیرت نه کوي) جنت ته نشي ننوتلی او نه د جنت بوی حس کولی شي او د جنت بوی له دومره دومره (رسول الله ﷺ یاد کړل) فاصلې څخه محسوس کیږي .

## اجنبي ښځې ته سلام اچول

**پوښتنه :** که اجنبي سړی اجنبي ښځې ته سلام اچوي دا روا ده؟

**ځواب :** سلام اچول هم په دوه ډوله وي یو پداسې حالت کې سلام اچول چې هلته د فتنې ډار وي او ددې ویره وي که سړی ښځې ته سلام ور واچوي نو ښځه به د سلام د ځواب سره نورې خبرې هم وکوي او لدې سلام څخه به د دواړو په مینځ کې فتنه شروع شي نو پداسې صورت کې سلام اچول ناروا دي او که د سلام اچونکي په ځان یقین وي چې څه

فتنه نشي واقع کېدلی نو بیا سلام اچول او د سلام ځواب ورکول دواړه روا دي او که د فتنې خطر وو نو بیا سلام نه اچول غوره دي او که ده ته یې سلام واچولو نو پټه خوله پاتې کېدل غوره دي .

## ښځه حاکمه کېدل

**پوښتنه :** د شریعت له مخې ښځه په سړیو باندې حاکمه کېدلی شي؟

**ځواب :** د معاشري کامیابي او حیاء پدې کې خوندي ده چې د پردیو ښځو او سړیو یو له بل سره تعلقات کم وي ترڅو چې پردي سړي او پردۍ ښځې یو له بل نه لرې وي دومره به هلته د حیاء خلاف کارونه مینځ ته نه راځي ددې امله خو په مختلفو روایاتو او قراني آیتونو کې ښځې ته ویل شوي دي چې دا د په کور اوسیږي او ترڅو چې ضرورت نه وي ښځه دې له کور نه بهر نه راوزي او که چېرته د سخت شرعي ضرورت له امله راوزي نو پداسې توګه د راوزي چې د خلکو د فتنې لامل نشي او پداسې صورت کې سړیو ته هم امر شوی دی چې که ښځه د کوم ضرورت له امله لوڅ مخ هم وي او یا غیر مسلمه وي او یا داسې ښځه وي چې د پردې ساتنه نه کوي نو تاسې خپل نظرونه ښکته کړئ په تېرو بحثونو کې یو آیت څو ځله تېر شو

یو ځل یې بیا را ګرځوم ﷲ ➢ د پیغمبر بیبیانو ته فرمایي :

سورة الاحزاب آیة ۳۳

وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَى

ترجمه : او قرار ونیسي (ای ښځو) په کورونو خپلو کې او مه ښکاره کوئ ښائست خپل (پردو سړیو ته) په شان د اظهار (او ښائست) د جاهلیت د ښځو ړومبنیو .

ﷲ ➢ چې د رسول ﷲ ﷺ پاک دامنو ښځو ته چې د پاکي او صفایي نمونې وي فرمایي تاسې په کور کینئ نو عامو ښځو ته چې د هېڅ ډول فساد نه کولو یقین وربانديې نه کیږي دا حکم په طریق اولی سره دی ځکه ددې حکم د ټولو مسلمانانو په ښځو باندې عملي دی او ټولو ته همدا حکم دی چې په کور کینئ ....

ﷲ ➢ فرمایي :

سورة احزاب آیة ۵۳

وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَاعًا فَاسْأَلُوهُنَّ مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ ذَلِكُمْ أَطْهَرُ لِقُلُوبِكُمْ وَقُلُوبِهِنَّ

ترجمه : او کله چې له دوی څخه کوم شی غواړئ نو د پردې نه د بهر ځای نه یې ترې وغواړئ

دا ټول هدایات شریعت ددې لپاره کوي چې د نارینه او ښځې په مینځ کې په فطري توګه سره

يو ډول جاذبيت پيدا کړل شوی دی يو بل سره را کش کوي او له بله پلوه د شيطان لوی مقصد همدا دی چې انسانان په څه ډول په يو قسم نه يو قسم مصيبت کې ښکېل کړي او شريعت مونږ ويښوي ترڅو د شيطان له لوري دوکه رانه کړل شي ﷲ ➢ نارينه ته وايي چې خپل نظر ښکته ساته او بيا زنانه ته وايي چې خپل نظر ښکته ساته ، ښځو ته وايي چې پرده مو نه وي کړې نو بهر ته مه راوزئ .

د حضرت ابي هريره ❼ نه روايت دی هغه فرمايي :

**أَنّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، قَالَ : " الْعَيْنَانِ تَزْنِيَانِ وَاللِّسَانُ يَزْنِي ، وَالْيَدَانِ تَزْنِيَانِ ، وَالرِّجْلانِ تَزْنِيَانِ ، وَيُحَقِّقُ ذَلِكَ الْفَرَجُ أَوْ يُكَذِّبُهُ**

ترجمه : رسول ﷲ ☸ فرمايل : سترګې هم زنا کوي (نا محرم ته کتل د سترګو زنا ده) ژبه هم زنا کوي (فحش خبرې کول يې زنا ده) لاسونه هم زنا کوي (د نا محرمو سره لاس لګول د لاسونو زنا ده) پښې هم زنا کوي (د نامحرمو د ليدلو او يا د هغوی سره د اختلاط ځای ته تلل يې زنا ده) بيا برابره خبره ده که فرج ددې زنا تصديق او که تکذيب کوي .

حضرت جريري بن عبد الله فرمايي : ما له رسول الله ﷺ نه پوښتنه وکوله چې يو دم مې په نا محرمه ښځه سترګې ولګيږي بيا زه څه وکوم؟

رسول الله ﷺ راته وويل : ته فوراً خپل نظر ښکته کړه (لاندې وګوره) (مشکوة المصابيح)

د حضرت بريدة رضي الله عنه نه روايت دی هغه فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : علي ګوره د يو ځل نظر څخه وروسته بل نظر مه کوه هغه اول نظر چې يو دم بغير د ارادې څخه کيږي هغه بښل کيږي دوهم نظر چې ستا په اراده سره وي هغه نه بښل کيږي (ابو داود)

همدارنګه رسول الله ﷺ فرمايي : نا محرم ته کتل د شيطان په غيشو کې يو زهرجن غيشی دی څوک چې نا محرمو ته نظر کول د الله ➢ د رضا لپاره پريږدي الله به ورته داسې ايمان نصيب کړي چې د هغه ايمان خوږ والی دی په خپل زړه کې محسوس کړي .

حضرت داود عليه السلام په خپل نصيحت کې خپل زوی حضرت سليمان عليه السلام ته فرمايي : په زمري او مار پسې لاړ شه مګر په اجنبي ښځه پسې مه ځه ځکه اجنبي ښځه په فتنه کې د اچولو څخه له زمري او مار څخه ډير خطرناک وي . (احياء العلوم)

د حضرت یحیی علیه ا لسلام نه چا پوښتنه وکوله : د زنا شروع له کوم ځای نه کیږي؟ هغه ورته وویل : د نا محرم له کتلو څخه . (احیاء العلوم)

حضرت فضیل بن عیاض رحمه الله فرمایي چې ابلیس وایي : نا محرم ته نظر زما هغه پخوانی غیشی دی چې کله هم خطا نه ځي (احیاء العلوم)

رسول الله ﷺ فرمایي : ای خلکو د ښځو څخه ځان وساتئ په بني اسرائیلو کې تر ټولو ړومبۍ فتنه د ښځو له امله وه .

نوددې ټولو خبرو مطلب همدا دی چې معاشره هغه وخت کامیابه وي چې سړي له ښځو څخه لرې وي او پردي سړي د ضرورت نه بغیر د پردیو ښځو سره تعلقات ونلري او کله چې په کومه معاشره کې ښځې او سړي سره یو ځای شي او د هغوی تعلقات زیات شي نو بیا د کامیابي او خوشبختي امید ختمیږي .

ددې امله خو اسلام ښځې له هغه شیانو څخه بښلې دي چې په هغې کې د کور نه بهر وتلو ته ضرورت وي د مثال په ډول .

په ښځه باندې د جُمعې مونځ فرض نه دی .

په ښځه باندې د اختر مونځ نه دی واجب.

ښځې ته ا جازه نشته چې حج ته یوازې لاړه شي نو ترڅو یې چې محرم نه وي حج ورباندې فرض نه دی .

په ښځه باندې جهاد فرض نه دی .
ښځې په دې نه دي مکلفې چې په جنازه پسې دې لاړې شي ... او داسې نور ..
نو چې دې خبرو ته وګورو اسلامي شریعت ښځه له سړیو نه او له هغه ځایونو څخه چې هلته ددې د عصمت او عزت د پایمال کیدو وېره وي لرې ساتي نو که چېرته ښځه حاکمه شي په قدم قدم به ددې ضرورت کیږي چې دا باید له نارینه وو سره په بیر بار کې را ښکېل شي او داسې ځایونو ته لاړه شي چې هلته د سړیو تعداد تر ښځو زیات وي او کله کله خو به داسې ځایونو ته هم د تلو ضرورت کیږي چې هلته د ښځو وجود بالکل نه وي بلکه ټول سړي وي دا به هغه سړیو ته خطاب کوي ، هغوی به خپل لوري ته متوجه کوي ، هغوی به دېته ګوري کله به ددې سره بحث کوي کله به دا د یو حاکم او مشر په حیث په فوځیانو ګرځي کله به د خپلې وظیفې د پوره کولو لپاره د شپې له کوره بهر راوزي او شریعت ددې ټولو کارونو مخالف دی له بله پلوه د رسول الله ﷺ په خوا کې د ښو استعدادونو لرونکې ښځې وې لکن رسول الله ﷺچاته هم څه مسئولیت نه وو ورکړی او نه یې دوی په کوم ځای یا په کومه ډله حاکمانې کړې وې .

همدارنګه چې الله ➢ فرمايي : **الرِّجَالُ قَوَّامُونَ عَلَى النِّسَاء** (يعني سړي په ښځو باندې مسلط کړل شوي دي) ددې نه په ښکاره ډول سره معلوميږي چې حاکم بايد سړى وي او که په سړيو باندې ښځه حاکمه شي نو بيا به ددې آيت څه معنى وي دا آيت اګر چې په کورنۍ ژوند کې نازل شوى دى لکن په عامه معنى سره د سړي حاکميت په ښځه باندې ثابتوي.

همدارنګه چې يوه ښځه وړوکى حاکميت نشي کولى (په کور کې د ننه سړى ورباندې حاکم دى) نو لوى حاکميت چې يوه ښځه په ډيرو خلکو باندې حاکمه شي څنګه ممکنه ده ؟

په قران کريم کې الله ➢ د حضرت سليمان عليه السلام او د بلقيس په واقعه کې فرمايي کله چې هد هد حضرت سليمان ⌨ ته راغلو نو دوه خبرې يې ورته په تعجب کې وکولې اول دا چې ما داسې قوم وليد چې ښځه يې حاکمه وه او بل دا چې د لمر عبادت يې کاوه نو سليمان ⌨ ورته خط وليږلو دوه خبرې يې ترينه و غوښتې يو دا چې لا تعلوا على په ما باندې به ځان لوړ نه ګڼې بلکه ماته تسليم شئ او اسلام قبول کړئ اوکه چېرته د دوى حاکمه ښځه نه واى نو بيا به ورته سليمان ⌨ ويلي وو چې اسلام قبول کړئ لکه

رسول الله ﷺ به چې کله بادشاه ته خط لېږلو نو هغه به يې ځان ته تسليم کېدو ته نه را غوښتو بلکه صرف ورته ويل به يې اسلام قبول کړئ د پيغمبرانو د چا د بادشاهي سره غرض نه وي صرف د الله ➢ متابعت ته خلک راغواړي لکن سليمان عليه السلام هغوی تسليم کېدلو ته را وغوښتل ځکه د اسلام قبلولو څخه يې وروسته هغه ښځه د دوی حاکمه نه پرېښودل غوښتل او بيا يې حاکمه هم ونه ساتله بلکه لرې يې کړه .

کله چې رسول الله ﷺ ته خبر ورسېدو چې د فارس خلکو د کسری لور خپله مشره مقرره کړه رسول الله ﷺ و فرمايل :

لَنْ يُفْلِحَ قَوْمٌ وَلَّوْا أَمْرَهُمْ امْرَأَةً (بخاري)

هغه قوم به کامياب نشي چې مشره يې ښځه وي.

همدارنګه د مسلمانانو حاکم کېدل د هغوی امامت کول دي او ښځه پدې اړه ډېر مشکلات لري ددې امامت نه صحيح کيږي ، کله کله پدې داسې حالت راځي چې دا بالکل جومات ته نشي ننوتلی ، کله کله به ددې د توالد او تناسل مشکلات راځي نو د امامت کارونه به ټول وروسته پاتې کيږي .

نو ځکه د اسلامي شريعت له مخې د ښځې حکمراني نا روا ده پدې اړه تفصيل زيات دی زه نشم کولی د يوې پوښتنې په ځواب کې يې را غونډ کړم .





## مېک اپ (ځان جوړول)

**پوښتنه :** ښځو ته ځان جوړول او په هر ډول چې وي ځان ښائسته کول روا دي؟

**ځواب :** ښځې كه زيورات آغوندي او يا په مخ باندې څه رنګونه لګوي او يا په لا سونو پښو وېښتانو باندې نكريزي لګوي ترڅو يې چې اجنبي نارينه ونه ويني نو حرمت پكې نشته لكن دا ځان جوړول كه پداسې ډول وي چې د انسان په خلقت كې بدلون كول وي نو بيا نا روا دي لكه د خپلو وېښتانو سره د بلې ښځې وېښته ملګري كول او داسې نور او يا كه ددې زينت له امله د شريعت كوم حكم ترپښو لاندې كيږي لكه د عام رنګ ناخون (د نوك) رنګ لګول په داسې شپو او ورځو كې چې ښځه مونځ كوي په نوك باندې به عام رنګ ناخون نه لګوي ځكه هغه لكه يو بېل پتهوكى داسې وي او نوك ته د اوبو د رسېدلو مانع ګرځي چې ددې امله بيا ددې رنګ سره د ښځې اودس او غسل نه صحيح كيږي نو چې اودس او غسل صحيح نشي نو ښكاره خبره ده چې مونځ نه صحيح كيږي او كه د نكريزي په ډول باندې رنګ د نوكانو لپاره وكارول شي نو بيا يې په لګولو پروا نشته .

## وېښتان كمڅی كول ضروري نه دي

پوښتنه : آیا د شریعت له نظره ښځه مجبوره ده چې خپل وېښتان کمڅې کړي؟

ځواب : د ښځې خوښه ده که د سر وېښته شاته خلاص پرېږدي او که يې درې کمڅې کوي چې يوه يو طرف او بله بل طرف او بله شاته پرېږدي لکن دا چې ټول وېښته د شا لخوا را ټول کړي او په سر باندې يې لکه د اوښ بوکام داسې ودروي دا شريعت ددې امله ناروا ګڼلي چې دا د کفارو ښځو طريقه ده هغه چې نه ټکرى په سر کوي او نه د وېښتو پټول کوم کار ګڼلي او اسلام مسلمانې ښځې ته حکم کوي چې داسې کارونه به نه کوي لکه کافره يې چې کوي رسول الله ﷺ فرمايي : **مَن تَشَبَّهَ بقَوْم فَهُوَ مِنهُمْ** (يعنې چا چې د کوم قوم سره ځان مشابه کړو دى له هغوى نه دى)

د بخاري شريف په بل اورږده حديث د حضرت ابي هريره ؓ نه روايت دى هغه فرمايي رسول الله ﷺفرمايل :

**صِنفَان مِن أَهل النَّار لَمْ أَرَهُمَا: قَوْمٌ مَعَهُمْ سِيَاطٌ كَأَذنَاب الْبَقَر يَضربُوْنَ بهَا النَّاس، وَنِسَاءٌ كَاسِيَاتٌ عَاريَاتٌ مَائِلاَتٌ مِمِيْلاَتٌ رُؤُوْسُهُنَّ كَأَسْنِمَةِ الْبُختِ الْعِجَافِ لاَ يَدْخُلنَ الْجَنَّةَ وَلاَ يَجدْنَ رِيْحَهَا وَإِن رِيْحَهَا لَيُوْجَدُ مِن مَسِيْرَةِ كَذَا وَكَذَا) أَخرجه مسلم.**

ترجمه : دوه ډلې د اور له اهل څخه دي تر اوسه پورې ما نه دي ليدلې.

۱. يو قوم به وي چې درې به يې لکه د غوايانو لکى په لاس کې وي او خلک به وربانديې وهي.

۲. او ښځې به وي چې په نوم به يې جامې آغوستې وي لکن په حقيقت کې به لوڅې وي دوى به کبر کونکې وي د حق نه بلې خوا ته ميلان کونکې وي او نور خلک هم له سمې لارې نه کږوي سرونه به يې لکه د بختي اوښانو بوکامونه داسې وي دوى جنت ته نشي ننوتلى او نه به د جنت بوى په دوى ولګيږي او د جنت بوى له دومره دومره فاصلې نه لګيږي (يعنى دوى به بالکل جنت ته نږدې ورنشي) .

نو ددې يو صورت نه بغير نور د ښځې اختيار دى که وېښته يوه کمڅۍ کوي او که يې ډېرې کمڅۍ جوړوي او که يې همداسې خلاص د شا طرف ته پريږدي ګناه پکې نشته .

# له بدن څخه اضافي ویښتان لرې کول

پوښتنه : که ښځه له خپل بدن څخه اضافي ویښته لکه برېتونه ، ږیره (چې د ځینې ښځو را ختلې وي) او وریځې لرې کوي دا روا دي؟

ځواب : ښځه له خپل ځان څخه اضافي ویښته لرې کولی شي ترڅو چې د شریعت لخوا ورته منع نه وي شوې او د شریعت لخوا د وریځو په ویستلو کې او دهغې په نرۍ کولو کې منع شوې ده حضرت عبد الله ابن مسعود فرمایل :

لعَنَ اللَّهُ الْوَاشِمَاتِ وَ الْمُسْتَوْشِمَاتِ وَ النَّامِصَاتِ وَ الْمُتَنَمِّصَاتِ وَ الْمُتَفَلِّجَاتِ لِلْحُسْنِ الْمُغَيِّرَاتِ خَلْقَ اللَّهِ

ترجمه : د الله ➢ لعنت د وي په هغه ښځه چې هغه تېتو (نښې، په پوستکې باندې ژور او همیشني خالونه او یا شکلونه ) جوړوي او په هغه ښځه چې هغه دا خالونه او شکلونه جوړول ترېنه غواړي او د الله ➢ لعنت د وي په هغه ښځه چې هغه د نورو ښځو وریځې ور جوړوي او هغه ښځې چې دا ورڅخه غواړي چې د دوی وریځې دې ورجوړې کړي او هغه ښځې چې د ښائست لپاره د خپلو مخامخ غاښونو په مینځ کې فرجې پیدا کوي دا د الله ➢ خلق ته تغیر ورکونکې ښځې .

ددې د منع وجه هم د حديث په آخر کې ښکاره شوه چې دا د الله ➢ په خلق کې بدلون راوستل دي او دا په شريعت کې نا روا دی او دا هغه څه دي چې ابليس ويلي وو وَ لَاٰمُرَنَّہُمۡ فَلَیُغَیِّرُنَّ خَلۡقَ اللّٰہِ (او زه به دوی (انسانانو) ته امر وکوم دوی به د الله ➢ په خلق کې بدلون راولي) .

او ددېنه بغير که د ښځې بريت را پيدا شي او يا يې ږيره را ښکاره شي او يا يې په لاسو باندې يا پښو باندې وېښته را څرګند شي که هغه لرې کړي او پدې لرې کولو کې يې غرض پرديو سړيو ته ښه ور ښکاره کول نه وي بلکه د خپل خاوند په وړاندې د ځان ښه ښکاره کولو په موخه دا کارکوي نو شريعت يې منع نه کوي (اللجنة الدائمة للإفتاء)

سعودي عالم شيخ ابن عثيمين رحمه الله د يوې پوښتنې په ځواب کې پدې ځای کې زياته کړه :
وېښته په دری ډوله دي .
۱. شريعت يې اخستل غوښتي وي .
۲. شريعت يې اخستل منع کړي وي .
۳. شريعت يې د اخستلو او نه اخستلو په اړه بالکل څه ويلي نه وي.
هغه چې شريعت يې ا خستل غوښتي وي هغه بايد واخيستل شي لکه د تخرګونو وېښته او تر نو

(نوم) لاندې وېښته ، د سږي برېتونه چې لوی شي .

هغه چې شریعت یې اختتل (پرې کول) منع کړي وي نو د هغې پرې کول بیا ممنوع وي لکه د سږي ږیره او یا د نارینه او ښځینه وریځې نری کول (حدیث د منع یې لږ وړاندې تېر شو)

او هغه چې شریعت پکې چپ شوی وي نه یې منع ترینه کړې وي او نه یې امر ورباندې کړی وي لکه د ښځې بریتان او ږیره نو د هغه اختیار د انسان سره دی چې څه دده خوښه وه هماغه د ورباندې وکوي.



## په وېښتانو پسې نور وېښته اچول

پوښتنه : که کومه ښځه په خپلو وېښتانو پسې د بلې ښځې وېښته اچول غواړي دا روا دي؟

ځواب : د سعودي د مفتي اعظم ابن باز رحمه الله نه دا پوښتنه وشوه هغه ورته و فرمایل : د وېښتانو سره د نورو وېښتانو پیوسته کول روا نه دي دا اضافي وېښته که د انسان او که د کوم حیوان وي دواړه روا نه دي دلیل یې هغه حدیث دی چې روایت شوی دی او په حدیث کې د انسان یا بل حیوان د وېښتو فرق نه دی شوی په عام ډول ورځخه منع شوېده په صحیح مسلم کې د حضرت اسماء بنت حضرت ابي بکر نه روایت دی هغه فرمایي : رسول الله ﷺ ته یوه ښځه راغله ورته یې وویل : یا رسول الله ﷺ زما یوه لور ده هغې ته د خسره بیماري ولګېده او وېښته یې خراب شول زه هغې ته نور وېښته ولګوم؟ رسول الله ﷺ ورته وویل : د الله ➢ لعنت د وي په هغه ښځه چې وېښته لګوي او هغه ښځه چې تړې غواړي چې دې ته د وېښته ولګوي.

# ویښتانو ته رنګ ورکول

**پوښتنه** : د شریعت له نظره ښځه خپل سپین ویښتان تورولی شي؟

**ځواب** : د ویښتانو په تورولو کې د نارینه او ښځینه فرق نشته د ویښتانو تورول نر او ښځې دواړو ته منع کړل شوي دي رسول الله ﷺ فرمايي :

غیروا هذا الشیب واجتنبوا السواد

ترجمه : دا زوړ والی (سپین رنګ) بدل کړئ لکن د تور رنګ نه ځان وساتئ .

نو که څوک خپلو ویښتو ته تور رنګ ورکوي دا روا نه دي او په همدې حدیث کې په ښکاره ډول ورڅخه منع شویده او که د تور نه بغیر بل رنګ ورکوي د مثال په توګه نکریزې ورباندې ایږدي نو بیا ګناه پکې نشته او که په کوم صورت کې تور رنګ د نکریزو سره ګډ کړي او په نتیجه کې رنګ بالکل تک تور نشي بلکه سور والی پکې وي نو بیا هم د ناروا والي نه وزي .

نکته : په پورتني حدیث کې رسول الله ﷺ و فرمایل : دا زوړ والی بدل کړئ او د تور رنګ نه ځان وساتئ یعني په نکریزو سره یې بدل کړئ نو دا ددې دلیل شو چې په سپینو ویښتو باندې نکریزې لګول سنت دي .

# د ضرورت له مخې د سر وېښته لنډول

**پوښتنه :** د يوې ښځې د سر په وېښتو کې بيماري ده لکه د وېښتو سرونه دوه کېدل او داسې نور آيا د شريعت له مخې ديته اجازه شته چې وېښته د علاج په موخه لږ لنډ کړي؟

**ځواب :** د ښځې د وېښتو د خريلو په اړه د رسول الله ﷺ څخه منع راغلې ده د حضرت علي ؓ نه روايت دی هغه فرمايي : **نهى النبي صلى الله عليه وسلم أن تحلق المرأة رأسها** (رسول الله ﷺ ددې څخه منع کړېده چې ښځه خپل سر و خريي ) په همدې ډول روايت د حضرت عائشې رضی الله عنها او حضرت عثمان څخه هم شوی دی امام حسن بصري رحمه الله فرمايي ددې څخه ځکه منع شوېده چې دا يو ډول مثلة (د شکل خرابول) دي ځکه په ښځه کې اصل دادی چې د هغې اوږده وېښتان وي چې ددې په ښائست کې لويه ونډه لري او همدارنګه د سر خرېل د سړيو سره يو ډول تشبيه ده له کومې نه چې منع شوېده او په عربو کې يو عادت دا هم وو چې کومې ښځې ته به لوی مصيبت پېښ شو هغې به د ځان خفه ښکاره کولو په موخه خپل سر و خريلو که پدې نيت باندې ښځه سر وخريي نو بيا خو بالکل لويه ګناه ده او حرام

دی رسول الله ﷺ فرمايي : **أَنَا بَرِيءٌ مِمَّنْ حَلَقَ وَسَلَقَ وَخَرَقَ** (زه د هغه چا نه بيزار يم چا چې (په مصيبت کې) سر و خريلو يا يې چيغې ووهلې او يا يې جامې و شکولې .

نو د ښځې لپاره غوره خبره داده چې ددې وېښته بايد اوږده وي او دا د ښځې يو زينت او ښکلا ده او په عربو کې مشهوره وه دوی به ويل :

إذا خطب أحدكم المرأة فليسأل عن شعرها كما يسأل عن جمالها فإن الشعر أحد الجمالين

ترجمه : په تاسې کې چې څوک چا ته د نکاح پيغام ور ليږي بايد دهغې د وېښتو په اړه هم پوښتنه وکوي ځکه وېښته هم يوه ښکلا ده .

لکن که د کوم عذر له امله يې کومه ښځه پرې کول غواړي نو روا دي لکن چې دوه شرطونه پکې وي :

۱. د نارينه وو د وېښتانو سره مشابهت پکې نه وي .

رسول الله ﷺ فرمايي :

ليس منا من تشبه بالرجال من النساء، ولا من تشبه بالنساء من الرجال

يعني له مونږ څخه نه دی هغه کس چې ځان يې له ښځو سره مشابه کړو او نه هغه ښځه چې ځان يې له سړيو سره مشابه کړو .
او دا تشبيه پداسې ډول کيږي چې ښځه خپل سر يا جامه او يا بل څه بالکل داسې کړي لکه څنګه يې چې سړي کوي .

## ۲. د کفارو ښځو د ويښتانو سره مشابهت پکې نه وي.

ددې تشبيه هم پېژندل داسې اسان دي چې انسان ووايي چې مسلمانه ښځه بايد خپل ويښته داسې جوړ نه کړي لکه کافره ښځه يې چې جوړوي هغه که په هر ډول وي ناروا ده .
ځکه اسلام مونږ ته امر کوي چې ځان به په هيڅ شي کې د هغوی سره نه مشابه کوو يعني هغه کار به نه کوو کوم چې صرف دوی کوي او هغه کار په دوی پورې خاص وي رسول الله ﷺ فرمايي : من تشبه بقوم فهو منهم (چا چې ځان په کومو خلکو پورې مشابه کړو دا له هغوی نه شو)
د رسول الله ﷺ بيبيانو به د ويښتو سرونه پرې کول په صحيح مسلم کې دا حديث نقل کړل شوی دی امام نووي رحمه الله د صحيح مسلم په شرح کې د همدې حديث په تفصيل کې ليکلي دي چې دا حديث د ويښتانو د سرونو د پرې کولو په روا والي

باندې دليل دی لکن د بيبيانو د وېښتانو پرې کول پداسې ډول نه وو چې يا لکه د کافرانو ښځو د وېښتانو په شان شي او يا داسې ښکاره شي لکه د سړي وېښته بلکه صرف ددې لپاره وو چې دوی ته يې پالنه اسانه شي او دا هم د رسول الله ﷺ د وفات نه وروسته وو او پدې وخت کې بيا د دوی زينت ته ضرورت نه وو ځکه مسلمانه ښځه يوازې د خپل خاوند لپاره ځان ښائسته کوي او چې کله رسول الله ﷺ وفات شو نو د رسول الله ﷺ بيبيانې د ټول عالم اسلام مورانې وې الله ➢ منع کړې وه چې د رسول الله ﷺ د وفات نه وروسته د څوک د هغه بيبيانې په نکاح کړي.

خلاصه دا چې شريعت د ښځې د وېښتو په اړه درې ډوله منع کړېده

١. بالکل به يې نه خريي (کلوي).

٢. داسې به يې نه جوړوي چې د سړيو د وېښتانو په ډول ښکاره شي.

٣. داسې به يې نه جوړوي لکه د کفارو ښځې يې چې جوړوي.

نو که د کومې ښځې د وېښتانو د علاج او يا کوم بل شي لپاره د وېښتانو پرې کولو ته احتياج شي نو يې دې د خپل احتياج په اندازه قطع کړي.
والله اعلم.

# بیوټي پارلر (آرائشګاه) ته تلل

پوښتنه : بیوټي پارلر (آرائشګاه) ته ښځه ځي او هلته ویښته په نوي طرز جوړوي او په هغو کې د کفارو سره تشبیه نه راځي نو دا روا ده؟

ځواب : ترڅو چې د ځان په جوړولو کې د شریعت مخالف څه شی مینځ ته رانشي نو په ځان جوړولو کې خپله څه ګناه نشته لکن د شریعت د مخالفت نه به پکې ښځه ځان ساتي د مثال په ډول .

١. هغه ښځه چې مونځ کوي (د حیض یا نفاس له امله له مانځه څخه منع نه وي) په ځان به داسې مواد نه لګوي چې د هغې له امله بیا مکمله ورځ اودس نه کوي او ددې وېره ورسره وي که اودس وکوي نو ټوله خواري به یې ا وبه یوسي.

٢. ځان ښائسته کول به ددې لپاره نه وي چې اجنبي خلک یې ګوري نو ښه ورته ښکاره شي (لکه هغه ښځې چې دفترونو ته ځي او ځانونه ښائسته کوي)

٣. په ځینې ځایونو کې د آرایشګاه کارکونکي نارینه وي دا بې حیایي به پکې نه وي .

٤. اصراف (بې فایدې زیات مصرف) به پکې نه وي

د سعودي د لوی عالم شیخ ابن عثیمین رحمه الله نه چې کله پوښتنه وشوه چې ښځه چا ته ورځي او هغه

یې وربانديډ وېښته جوړوي دا روا ده او که ناروا؟ هغه رحمه الله ورته وويل :

زه چې څومره خبر يم چې ښځې هلته ځي ډېر زيات فيس ورکوي زما په نظر دا د مال ضائع کول دي ښځه به د خپل خاوند لپاره ځان پداسې ډول ښائسته کوي چې د مال ضائع کول پکې نه وي او زه خپلو ښځو (مسلمانو ښځو) ته نصيحت کوم چې ددې اصراف نه د ځان وساتي رسول الله ﷺ د مال د ضائع کولو څخه منع کړېده او که کومه ښځه چاته ورځي هغه يې په کمو پيسو (چې په همدغه ځای او همدغه وخت کې ورته کمې ويل کيږي) جوړوي نو پروا يې نشته . (ابن عثيمين رحمه الله)



## مصنوعي ویښته لګول

**پوښتنه :** که د کومې ښځې ویښته نه وي هغې ته شریعت د مصنوعي ویښتانو د استعمال اجازه ورکوي؟

**ځواب :** مخکې تېر شول چې د لا زیات ځان ښائسته کولو په موخه که کومه ښځه د خپلو ویښتانوسره اضافي ویښته لګوي نو دا ناروا ده رسول الله

ﷺپه هغه ښځه باندې لعنت ویلی دی چې د خلکو له ویښتو سره ویښته لګوي او په هغه ښځه یې هم لعنت ویلی دی چې ددې ښځې نه غواړي چې ددې له ویښتو سره نور ویښته ولګوي لکن که د کومې ښځې بالکل ویښته نه وي او له ځان څخه دا عیب لرې کوي چې چاته پکې دوکه ورکول نه وي نو له ځان څخه دا عیب لرې کول روا دي په یوه غزوة کې چې د یو صحابي پوزه پرې شوه رسول الله

ﷺورته اجازه ورکړه چې ځان ته د سرو زرو پوزه جوړه کړي نو ددې پک والي (د ویښتو د نشت والي) دا عیب لرې کول د همدې حدیث د مضمون له امله روا دي .

# سرخي سفيده او نور پوډر لګول

**پوښتنه :** ښځه چې ځان جوړ کړي او د ځان ښائسته کولو لپاره مختلف مواد په خپل مخ ولګوي مونځ ورسره کيږي ؟

**ځواب :** که ښځه ځان په موادو او دواګانو ښائسته کړي نو پدې کې دوه خبرې ضروري دي .

١. پدې موادو کې به داسې شی نه وي چې هغه په اصل کې نجس وي او د نجاست له امله د مونځ د صحت مانع وګرځي.

٢. که چېرته يې د اوداسه نه وړاندې دا مواد په خپل بدن او په مخ اېښي وو نو بيا به داسې مواد نه وي چې څرمنې ته د اوبو رسېدل منع کوي که داسې مواد وي چې څرمنې ته اوبه نه ور پرېږدي نو بيا اودس نه صحيح کيږي نو مونځ يې هم نه دی صحيح علاج يې دادی چې په داسې توګه به اودس کوي چې دا مواد يې په مکمله توګه له بدن څخه لاړ شي او که چېرته يې اودس وکولو د هغه نه وروسته يې په مخ او يا يې په لا سونو باندې کېښودل چې څرمن ته يې اوبه نه پرېښودې نو اوس ترڅو يې چې اودس مات نه وي نو په همدې اوداسه باندې مونځ کولی شي چې کله يې اودس مات شو بيا به د سر نه چې اودس کوي نو دا

مواد به له بدن څخه پاکوي بیا به یې اودس کیږي .

## نوکان اوږده ساتل

پوښتنه : ځینې ښځې خپل ټول نوکان ځینې د یو لاس نوکان او ځینې د یوې ګوتې نوک ډېرلوی ساتي او تر ډېره وخته یې نه پرې کوي د شریعت له نظره ددې څه حکم دی؟

ځواب : د نوکانو پرې کول د نارینه او ښځینه دواړو لپاره په یو ډول سنت دي پدې حکم کې د ښځې او نر هېڅ فرق نشته رسول الله ﷺ فرمایلي دي

**خَمْسٌ مِنْ الْفِطْرَةِ: الْخِتَانُ وَالِاسْتِحْدَادُ وَتَقْلِيمُ الْأَظْفَارِ وَنَتْفُ الْإِبِطِ وَقَصُّ الشَّارِبِ**

ترجمه : پنځه کارونه له فطرت څخه دي ۱. سنتي ۲. د نو (نوم) نه لاندې وېښته کلول (خریل) ۳. نوکان پرې کول ٤. د تخرګ نه وېښته لرې کول ٥. بریتونه پرې کول . لکن دا نوکان په څومره وخت کې پرېکول سنت دي ؟ ددې خبرې ځواب د حضرت انس ابن مالک ❼ په حدیث کې دی هغه فرمایي :

**وُقِّتَ لَنَا فِي قَصِّ الشَّارِبِ وَتَقْلِيمِ الْأَظْفَارِ وَنَتْفِ الْإِبِطِ وَحَلْقِ الْعَانَةِ أَنْ لَا نَتْرُكَ أَكْثَرَ مِنْ أَرْبَعِينَ لَيْلَةً**

ترجمه : رسول الله ﷺ زمونږ لپاره د برېتو د پرې کولو ، نوکانو د اخستلو ، د تخرګ د وېښتانو د لرې کولو او د نو (نوم) نه لاندې وېښتانو د پرې کولو لپاره وخت ټاکلی دی او مونږ ته يې امر کړی دی چې تر څلوېښتو ورځو يې زيات بايد پرې نه ږدو .

نو د نوکانو پرېښودل ددې سنت خلاف دي او مکروه دي د کراهيت وجه يې يوه داده چې د نوکانو لوی والی د نظافت خلاف دي او ددې سره نظافت نه کيږي او تر لويو نوکانو لاندې خيری جمع کيږي او بل د لويو نوکانو سره انسان د ځناورو سره مشابه کيږي .



## د اجنبي ښځې اواز

که یو سړی د اجنبي ښځې په اواز سره خوند اخلي آورېدل یې نا روا دي همدارنګه که ښځه د سړي په اواز سره خوند اخلي نو هغې ته یې هم آورېدل نا روا دي او ښځه به د خپل اواز ساتنه کوي چې ا جنبي سړې یې وانه وري او که چېرته یې ورسره د خبرې ضرورت وي نو بیا به په نرم د تبسم نه په ډک اواز خبرې نه کوي الله ➢ د رسول الله ☸ بیبیانو ته فرمایي لکن حکم یې عام دی هرې مسلمانې ښځې ته دا خطاب دی :

سورة احزاب آية ۳۲

يٰنِسَآءَ النَّبِيِّ لَسْتُنَّ كَاَحَدٍ مِّنَ النِّسَآءِ اِنِ اتَّقَيْتُنَّ فَلَا تَخْضَعْنَ بِالْقَوْلِ فَيَطْمَعَ الَّذِيْ فِيْ قَلْبِهٖ مَرَضٌ وَّ قُلْنَ قَوْلًا مَّعْرُوْفًا (۳۲)

ترجمه : ای د نبي بیبیانو تاسې د نورو ښځو په شان نه یاست که تاسې پرهیزګاري کوئ نو تاسې په خپلو خبرو کې نرمي مه کوئ (که چېرته تاسې پسته خبره وکړه) نو (بده) طمع به وکوي هغه څوک چې په زړه کې یې څه رنځ وي (د نفاق یا فسق او فجور) او تاسې ښه خبره کوئ لکه مخکې چې تېر شول حکم د رسول الله ☸ بیبیانو ته شوی دی او حکم یې عام دی.

## د پردې ښځې سره کېناستل

نارینه او ښځه چې محرم نه وي په یو ځای به یوازې (چې دریم کس ورسره نه وي) نه کیني سره ددې چې که د دواړو په ځان پوره اعتماد هم وي بیا یې هم کیناستل نه دي روا رسول الله ﷺفرمایي :

ما خلا رجل و امرأة إلا و كان الشيطان ثالثهما

ترجمه : کله چې یو اجنبي سړی د یوې اجنبي ښځې سره په یو ځای کې کیني شیطان د دوی دریم وي .

## د حمل بندول

پوښتنه : د حمل د بندولو د دوا خوړل د شریعت له نظره څه حکم لري؟

ځواب : تر هرڅه وړاندې یو مسلمان ته په کار دي چې هغه هرڅو کولی شي د خپل نسل په زیادت سره د رسول الله ﷺ امت زیات کړي او همدا هغه شی دي چې رسول الله ﷺ ورباندې فخر کوي رسول الله ﷺفرمایي :

تزوجوا الودود الولود فإني مكاثرٌ بكم الأمم (ابو داود)

ترجمه : داسې ښځې وکوئ چې هغه مینه ناکې او د ډیرو اولادونو راوړونکې وي ځکه زه (د قیامت

په ورځ) ستاسې په ډېر والي باندې په نورو امتونو باندې فخر کوم .

ځکه د امت زيات والی د امت لپاره عزت دی او الله ➢ بني اسرائيلو ته د انعام په ځای کې ياد کړی دی او په دوی يې احسان شودلی دی چې دوی يې ډېر کړي دي الله ➢ بني اسرائيلو ته فرمايي (و جعلناكم اكثر نفيراً) ترجمه : او تاسې مې د نفوس په حساب زيات کړئ حضرت شعيب ⌨ خپل قوم ته د الله ➢ په نعمتونو کې د دوی ډېروالی ور په زړه کوي او ورته فرمايي واذكروا اذ كنتم قليلاً فكثركم (د ياد کړئ هغه وخت چې تاسې لږ وئ بيا الله ➢ زياد کړئ او ددې نه هېڅوک هم انکار نه کوي چې د کوم قوم زياتوالی د هغه قوم عزت دی او ددې په خلاف هغه نظريه مکمله غلطه ده چې خلک فکر کوي که کوم قوم زياتيږي نو د قوم زيادت د هغه قوم د لوږې او فقر سبب کيږي .

مسلمانان بايد د نفوس د زياتوالي نه ددې امله ونه ډارشي چې دوی به وږي شي او يا به غريبان شي بلکه بايد د الله ➢ وعده هر وخت ورته په ياد وي چې الله ➢ فرمايي : وما من دابة في الأرض إلا على الله رزقها (په دنيا کې د هر ژوندي شي روزي په الله ➢ ده) نو که څوک اولاد

ددې املـه بـندوي چې اولاد يـې زيـات نـشي بـيـا بـه دا څنګه مړوي او د دوی د تعليم انتظام به څنګه کوي نو دا کار بالکل نا روا دی او د اولاد بندول روا دي لکن په دريو شرطونو:

۱. چې مور بيماره وي د حمل او بيا د هغه د وضع مشکلات نشي برداشت کولی او يا يې بل ماشوم وړوکی وي يعني لږ وخت شوی وي چې مخکنی حمل يې وضع کړی او هرکال د حمل د وضع کولو توان پکې نه وي او يا بل داسې څه مشکل وي چې د هغه له مخې مور د حمل او د حمل د کېښودلو مشکلاتو ته غاړه نشي کېښودلی .

۲. خاوند به د حمل د بندولو د دوا د خوراک اجازه ورته کړې وي ځکه په اولاد کې د خاوند حق دی همدارنګه که خاوند داسې څه دوا خوري چې د هغه اولاد ونشي نو د ښځې اجازه پکې په کار ده .

۳. دا دوا به داسې دوا نه وي چې د ټول عمر لپاره حمل بند کړي ځکه دا نسل قطع کول دي او دا ناروا دي اوس چې د ضرورت له مخې يې د موقت وخت لپاره خوراک روا دی نو کېدای شي الله

➢ مور ته صحت ورکړي او بيا دا مشکل له مينځه لاړ شي .

## حمل لرې کول (ماشوم ضائع کول)

پوښتنه : که انسان نه غواړي چې ښځه حامله شي لکن بیا هم هغې حمل واخیست اوس غواړي چې او دا ماشوم بېرته لرې کړي د شریعت له نظره ددې کار څه حکم دی؟

ځواب : د حمل لرې کول یا د ماشوم ضائع کول یوه داسې مسئله ده چې علماء پکې په اسانه سره فتوی نشي ورکولی او په فتوی ورکولو کې یې علماء داسې احتیاط کوي لکه د چا د مرګ فتوی چې ورکوي زه دلته ستاسې مخې ته د علماوو څه خبرې اېږدم چې ما د ډېرې زیاتې مطالعې وروسته را ټولې کړې دي .

## د حمل د لرې کولو سببونه

په عامه توګه چې کله مور او یا مور پلار دواړه د حمل لرې کولو ته رضا کېږي هلته د دوی په وړاندې له دریو لاندېنیو سببونو څخه یو موجود وي :

١. د مور د حمل نه خلاصول غواړي . (ددې لپاره مختلفې وجې کېدلی شي)

٢. د حمل په بقاء (پاتې کېدلو) کې د مور د ژوند او یا صحت خطر وي د هغه خطر د لرې کېدلو لپاره د مور څخه حمل لرې کول کېږي .

۳. معلومه شي چې د مور په ګېډه کې په ماشوم کې داسې لوی عیبونه دي چې که دا پیدا شي نو بیا به یې هېڅ ډول علاج ممکن نه وي .

## د حمل د لرې کولو اصلي حکم

د حمل د لرې کولو اصلي حکم منع دی پدې معنی چې په اصل کې دا کار ناروا دی ځکه چې د همدې حمل نه به یو څو میاشتې وروسته یو انساني نفس پیدا کیږي او الله ➢ ، رسول الله ☸ او اسلام د هر ډول انساني نفس قدر کوي الله ➢ فرمایي :

سورة انعام آیة ۱۵۱

وَلَا تَقْتُلُوا النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ

ترجمه : او مه وژنئ هغه نفس چې الله ➢ حرام کړی دی مګر په حق سره .

همدارنګه چې یوه ورځ کله رسول الله ☸ په جومات کې ناست وو یوه ښځه جومات ته را ننوته د رسول الله ☸ په وړاندې ودریده او ورته یې وویل : یا رسول الله ☸ ما زنا کړیده ما پاکه کړه .. د رسول الله ☸ د مخ مبارک رنګ داسې سور شو تا به ویل چې ا وس به تریننه وینې و څاڅي مخ یې تریننه ښي اړخ ته واړولو او ځان یې داسې ښکاره کړو لکه ده صلی الله علیه وسلم چې څه شی نه وي آوریدلي د رسول الله ☸ مطلب دا وو چې دې ته

وخت ورکړي چې دا له خپلې خبرې بېرته وګرځي لکن هغه داسې پاکه مومنه ښځه وه چې ایمان یې زړه ته ننوتلی وو او ددې ګناه له امله یې د جسم په ذره ذره کې دا احساس ننوتلی وو چې رسول الله ﷺ یې پاکه نه کړي دا ددې ګناه څخه نه پاکیږي بیا یې رسول الله ﷺ ته وویل : یا رسول الله ﷺ ماته ښکاریږي چې ته ما داسې رد کوې لکه تا چې ماعز ابن مالک رد کړی وو لکن زما د قسم زه همدا اوس د زنا څخه حامله یم رسول الله ﷺ چې کله پوه شو چې دا حامله ده نو یې ورته وویل : ځه لاړه شه ترڅو دا ماشوم پیدا شي .

په کومه ورځ یې چې ماشوم پیدا شو په اوله ورځ کې یې د رخت په یوه ټوټه کې نغښتی وو ورته یې راوړو ورته ویل ئې یا رسول الله ﷺ ما پاکه کړه دا دی ماشوم پیدا شو ... رسول الله ﷺ یې ماشوم ته وکتل ... د مهربان پیغمبر زړه ماشوم ته نرم شو او په ماشوم یې رحم راغلو نو یې مور ته وویل : ځه دا یوسه ده ته شودې ورکړه چې کله دې بېل کړو بیا راشه .

بیا هغه کور ته لاړه ماشوم ته یې شودې ورکړې تردې چې هغه یې پداسې حالت کې رسول الله ﷺ ته بېرته راوړو چې په لاس کې یې د ډوډۍ ټوټه وه او خوړله یې رسول الله ﷺ ته یې وویل : یا رسول

الله ﷺ ما پاكه كړه دا دى ماشوم مې بېل كړو اوس خوراكونه خوري رسول الله ﷺ هغه ماشوم واخيستو او ويې ويل :
من يكفل هذا وهو رفيقي في الجنة كهاتين
(څوك چې ددې ماشوم پالنه وكوي هغه به په جنت كې زما سره داسې په يو ځاى كې وي لكه زما دا دوه ګوتې) .
بيا په مسلمانانو كې يو كس را پاڅېدو او دا ماشوم يې د ساتنې او كفالت لپاره د رسول الله ﷺ څخه واخيستو رسول الله ﷺ امر وكولو او په هغې باندې يې د رجم حد جاري كړو پدې قصه كې ښكاره كيږي چې رسول الله ﷺ د هغه معصوم ماشوم څومره ساتنه وكوله ترڅو چې ماشوم نه وو پيدا شوى حد يې قائم نه كړو بيا ترڅو چې په خوراك كې هغه د مور نه مستغني شوى نه وو نو بيا يې هم حد قائم نه كړو ترڅو مور ورته شودې وركړي او بيا يې په مور د حد د قائم كولو نه وړاندې دهغه ماشوم د كفالت كار وكولو بيا يې په مور حد جاري كړو اسلام د يو نفس همدومره ساتنه كوي او تر آخره حده پورې داسې لاره خوښوي چې په هغې كې د نفس ضياع رانشي .
امام غزالي رحمه الله په احياء العلوم كې فرمايي :

د مور په ګېډه کې د ماشوم اوله مرتبه داده چې د نارينه د توالد او تناسل ماده د مور رِحم ته لاړه شي او د مور له مادې سره ګډه شي او د ژوند قبلولو ته تياره شي او پدې وخت کې ددې لرې کول جنايت دی او بيا ددې نه وروسته د هغه مادې نه ټوټه جوړيږي که پدې وخت کې لرې کړل شي نو دا لوی جنايت دی بيا په دې کې روح اچول کيږي که پدې وخت کې لرې کړل شي نو دا ډېر لوی جنايت دی او بيا چې هغه مکمل ژوندی شي په هغه صورت کې يې لرې کول د جنايت د بد والي انتها ده . (احياء علوم الدين )

## د جنين مرتبې

د حمل په لرې کولو کې يو اختلاف په دې کې دی چې ځينې علماء فرمايي چې تر ژوندي کېدلو وړاندې يې لرې کول روا دي او وروسته نه دي روا او ځينې علمای لکه لږ مخکې چې د امام غزالي رحمه الله نظر تېر شو چې په هېڅ صورت کې نه دی روا پدې اختلاف د ښه پوه کېدلو لپاره بايد د مور په ګېډه کې د ماشوم مرتبې وګورو بيا به مونږ ته ښکاره شي چې ماشوم څه وخت ژوندی جوړيږي ، څه وخت مکمل کيږي پدې اړه الله

➢ فرمايي :

يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنْ كُنْتُمْ فِي رَيْبٍ مِنَ الْبَعْثِ فَإِنَّا خَلَقْنَاكُمْ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُطْفَةٍ ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ ثُمَّ مِنْ مُضْغَةٍ مُخَلَّقَةٍ وَغَيْرِ مُخَلَّقَةٍ لِنُبَيِّنَ لَكُمْ وَنُقِرُّ فِي الْأَرْحَامِ مَا نَشَاءُ إِلَى أَجَلٍ مُسَمًّى ثُمَّ نُخْرِجُكُمْ طِفْلًا ثُمَّ لِتَبْلُغُوا أَشُدَّكُمْ وَمِنْكُمْ مَنْ يُتَوَفَّى وَمِنْكُمْ مَنْ يُرَدُّ إِلَى أَرْذَلِ الْعُمُرِ لِكَيْلَا يَعْلَمَ مِنْ بَعْدِ عِلْمٍ شَيْئًا وَتَرَى الْأَرْضَ هَامِدَةً فَإِذَا أَنْزَلْنَا عَلَيْهَا الْمَاءَ اهْتَزَّتْ وَرَبَتْ وَأَنْبَتَتْ مِنْ كُلِّ زَوْجٍ بَهِيجٍ

ترجمه : ای (له بیا را ژوندي کېدلو څخه منکرو) خلقو که یئ تاسې په شک کې له بعث څخه (چې خلق بیا ژوندي پورته کیږي له قبرونو څخه اول خپل حال ته وګورئ!) پس بېشکه مونږ پیدا کړی دی (نیکه د) تاسې له خاورې بیا (مو پیدا کړه اولاده د آدم) له یوه څاڅکي (مني) څخه بیا له یوې ټوټې کلکې پنډې وینې بیا له یوې ټوټې غوښې چې پوره جوړه شوې وي او چې پوره شکل یې نه وي جوړ کړل شوی د پاره ددې چې بیان کړو مونږ تاسې ته (خپل کامل حکمت او قدرت) او ثابت پریږدو مونږ په ارحامو کې هغه شی چې اراده وکړو د هغه د اثبات تر نیټې معلومې پورې (چې د زیږیدلو وخت دی) بیا را وباسو مونږ تاسې (له ګېډو د میندو څخه حال دا چې) طفل (وئ) بیا (پالو تاسې) تر هغه پورې چې ورسېږئ تاسې کمال او قوت خپل ته (جسماً او

عقلاً) او ځینې لتاسې څخه هغه دي چې وفات کولی شي (له رشد او قوت څخه وروسته یا وړاندې) او ځینې لتاسې څخه هغه دي چې رد کول کیږي (یعني ژوندی پاتی کیږي) تر ناکاره عمر پورې د پاره ددې چې نه پوهیږي وروسته له پوهې نه په هېڅ شي (د خپلو قواوو د بېکاره کېدلو له امله) او وینې به ته زمکه وچه شاړه نو هر کله چې نازلې کړو مونږ په دغه وچه زمکه د اسمان لخوا اوبه وخوځیږي او ډډه شي او زرغون کړي له هر قسم نباتاتو څخه ښائسته ، تاند تنکي تیغ (د وښو په شنه کېدلو سره) .

په بل ځای کې الله ➢ فرمایي :

سورة المؤمنون آیة ۱۲-۱٤

**وَ لَقَدْ خَلَقْنَاْ الإِنْسَاْنَ مِنْ سُلاْلَةٍ مِنْ طِيْنٍ ثُمَّ جَعَلْنَاْهُ نُطْفَةً فِيْ قَرَاْرٍ مَكِيْنٍ ثُمَّ خَلَقْنا النُّطْفَةَ عَلَقَةً فَخَلَقْنَاْ الْعَلَقَةَ مُضْغَةً فَخَلَقْنَاْ الْمُضْغَةَ عِظَاْمَاً فَكَسَوْنَاْ الْعِظَاْمَ لَحْمَاً ثُمَّ أَنْشَأْنَاْهُ خَلْقَاً آخَرَ فَتَبَاْرَكَ اللهُ أَحْسَنُ الْخَاْلِقِيْنَ**

ترجمه : او قسم دی خامخا په تحقیق پیدا کړی دی مونږ انسان (آدم) له خالصې (صافي له خیري ویستلې شوې) ختو نه بیا وګرځاوه کېښود (اولاده د) دغه (آدم) نطفه ) ترلی څاڅکی مني) په یو قرارګاه محکم (رحم کې) بیا مو وګرځوله دا نطفه ټوټه د وینو (کله سریښناکه) بیا وګرځوله مونږ دغه ټوټهٔ د وینو یوه وړه

بوټۍ د غوښو بیا وګرځوله مونږ دا بوټۍ د غوښو هډوکي بیا ور واغوسته مونږ دې هډوکو ته (پس له پیدا کولو د رګونو او د پلو او نورو شیانو) غوښه بیا مو (ژوندی) پیدا کړی دی په پیدائښت بل سره (په نوي صورت) پس ډیر لوړ لوی دی شان د الله ➢ (په قدرت او حکمت خپل کې) چې ډیر ښه پیدا کونکی (صورت تړونکی) دی (له نورو پیدا کوونکیو څخه خلقاً)

په پورتنیو آیتونو کې د انسان د پیدائښت مرتبې داسې بیان شوي دي .

١. د انسانیت نیکه حضرت آدم ⌨ د خاورې نه پیدا کړل شو .

٢. بیا انسان د مني له یو څاڅکي نه پیدا کیږي .

٣. بیا له مني (نطفې) څخه کلکه وینه جوړ یږي .

٤. بیا له وینې څخه د غوښې ټوټه جوړیږي.

٥. بیا د همدې ټوټې څخه هډوکي جوړیږي (او رګونه پلې او نور شیان پیدا کیږي)

٦. بیا دې هډوکو ته غوښه ور آغوستله کیږي.

٧. بیا پکې روح اچول کیږي .

٨. بیا تر معلومې نیټې پورې په رحم کې پاتې کیږي .

۹. بیا ماشوم را پیدا کیږي ....

اوس په جنین کې د روح اچول کېدو څخه وړاندې د امام ابي حنیفه رحمه الله په مذهب کې یو قول دادی چې ترڅو ژوندی نه وي نو که ضرورت شي لرې کول یې روا دي امام ابن عابدین رحمه الله فرمایي : يباح إسقاط الولد قبل أربعة أشهر (تر څلورو میاشتو وړاندې د ماشوم لرې کول روا دي ) (الدر المختار)

په فتح القدیر کې لیکلي دي : هل يباح الإسقاط بعد الحمل؟ نعم يباح ما لم يتخلق منه شيء، ولن يكون ذلك إلا بعد مائة وعشرين يوما. وهذا يقتضى أنهم أرادوا بالتخلق نفخ الروح

ترجمه : آیا د حمل نه وروسته د ماشوم لرې کول روا دي؟ هو ترڅو چې هغه جوړ شوی نه وي او دا تر ۱۲۰ ورځو وړاندې نشي کېدلی او ددې مطلب دادی چې د دوی د جوړښت نه مطلب په هغه کې روح اچول کېدل دي .

په البحر الرائق کې لیکلي دي :

امرأة عالجت في إسقاط ولدها، لا تأثم ما لم يستبن شيء من خلقه (البحر الرائق)

ترجمه : یوه ښځه وه چې څه داسې دوا یې وخوړه چې د هغې له امله حمل وغورځېدو نو پدې څه ګناه نشته ترڅو چې دهغه جوړښت ښکاره شوی نه وي .

معنی دا چې د حنفي مذهب له مخې په ماشوم کې روح په څلورمه میاشت کې اچول کیږي او چې کله عاجل ضرورت شي نو تردې وخت وړاندې د حمل لرې کول روا دي البته ضرورت دا معنی نه چې څوک زیات اولاد نه غواړي، یا څوک ددېنه ډاریږي چې اولاد به مې زیات شي بیا به یې خوراک او څښاک څنګه وي او داسې نور .... دا خبرې شرعاً ضرورت نه ګڼل کیږي البته که د مور د مرګ خطر وي نو دا بیا ضرورت دی .

کله چې د (اللجنة الدائمة للإفتاء في السعودية) څخه دا پوښتنه وشوه هغوی ورته ډېر ښکلی ځواب ورکړو زه یې دلته نقل کوم .

١. د حمل په اول وخت کې یعني په اولو څلوېښتو ورځو کې هم د حمل لرې کول تر هغه وخته پورې روا نه دي ترڅو سخت ضرورت نشي او یا د لوی ضرر دفع کول پکې مطلب نه وي او ددې ضرر د ښکاره کولو لپاره به د علم الطلب او اسلام له نظره د معتمدو ډاکټرانو نظریه ضروري وي چې هغه ووایي که دا ماشوم پیدا شي نو د مور د مرګ خطر دی او یا د همدې ماشوم د مرګ خطر دی او داسې نور ... او که دا لرې کول ددې

املـه وو چې زمـا اولاد زيـاد دی کـه دا مـاشوم پـيدا شي دده خوراک او تـربـيه بـه څنګه کـيږي يـا بـه د دوی آيـنده څنګه وي او يـا زمـونږ مـوجوده اولاد بس دی نـور نـه غـواړو نـو پـدې صورتـونـو کې د حمل لـرې کـول بـالـکل نـاروا دي .

۲. لږ مـخکې تـېر شول چې نـطفـه د مـور پـه ګـېډه کې بـيا ويـنه شي او بـيا ټـوټـه شي نـو چې کـلـه ټـوټـه شي بـيا ددې حمل لـرې کـول تـر هغـه وختـه پـورې نـه دي روا چې تـرڅو د طب او اسلام لـه نګاه نـه معتمد ډاکټـران دا معـلـومـه نـه کـړي چې کـه دا مـاشوم پـيدا شي د مـور د ژونـد خطر دی او کـلـه چې نـومـړي ډاکټـران ددې تـصديـق وکـوي نـو بـيا يـې لـرې کـول روا دي لـکن مـخکې لـه لـرې کـولـو نـه بـه ددې خطر د لـرې کـولـو لـپاره هره مـمکنه وسيلـه استعمـالـوي کـه بـل حل يـې نـه وو نـو بـيا دې حمل لـرې کـړي .

لـنډه دا چې تـر ژونـدي کـېدلـو وړانـدې چې ضرورت شي د امـام ابـي حنـيفـه رحمـه الله د مـذهب لـه مـخې دا حمل لـرې کـولـی شي او چې کـلـه ژونـدی شي بـيا پـه اتـفـاق د مـذهبـونـو ددې حمل لـرې کـول نـاروا دي داسې دي لـکه ژونـدی انـسان مړ کـول .

# اختلاط

## د پردي سړي او پردۍ ښځې (يو ځای کېناستل او پاڅېدل)

**پوښتنه :** د ستر په اړه مخکې خبرې تېرې شوې لکن که کومه ښځه په پرده کې وي د هغې لپاره روا دي چې د سړيو سره په يو ځای کيني ، پاڅيږي، خبرې وکوي او داسې نور ..... ؟

**ځواب :** د ښځو او سړيو شريک کېدل او يو له بل سره اختلاط په درې ډوله دی .

١. د ښځو اختلاط له خپلو محارمو سره (ورونو ، پلرونو، زامنو او داسې نورو) سره نو پدې کې هېڅ پروا نشه او په روا ولې کې يې شک هم نشته .

٢. د ښځو اختلاط د پرديو سړيو سره صرف د خوند اخستلو لپاره، بدو کارونو لپاره، ګډېدا او رقص لپاره نو ددې په ناروا والي کې هېڅ شک نشته.

٣. د ښځو ا ختلاط د پرديو سړيو سره په درسونو کې، دوکانونو کې، دفترونو کې، شفاخانو کې، ودونو کې ددې په اړه مو يو څه تفصيل ته پام را ګرځوم .. هغه دا چې الله له يوه پلوه انسان ډېر ضعيف پيدا کړی دی او د بله پلوه يې د

نـاريـنـه پـه طبـيـعت کـې ښځو تـه او د ښځو پـه طبـيعت کـې سړي تـه مـيلان اچـولـی دی

نـو چې کـلـه هم د پـرديـو ښځو او سړيـو پـه مـينـځ کـې اختلاط شروع شي نـو د بـد غرض پـه لـوري خبـر روانـه شي ځکه نـفسونـه پـه بـدو کـارونـو بـانـدې امـر کـونـکي دي او کـلـه د خـواهش غـلـبـه د انـسـان د عقـل سـترګـې ړنـدوي او شيـطـان پـه مـسلـسلـه تـوګـه د انـسـان د ګمـراه کـولـو پـه کـوښښ کـې پـداسې تـوګـه مـصروف وي چې پـه هـره ثـانـيـه کـې وخت پـيـدا کـړي انـسـان ګمـراه کـوي نـو پـه پـورتـنـيـو يـاد کـړل شويـو ځـايـونـو کـې چې نـاريـنـه او ښځيـنـه د کـوم ضرورت لـه املـه يـوځـای کـيـږي بـايـد يـوځـای کـېدل يـې د همـاغـه ضرورت پـه انـدازه وي او ددې لـپـاره بـې شمـاره دلـيـلـونـه دي چې کـلـه پـردی سړی او پـردۍ ښځه پـه يـو ځـای کـې سره پـاتـې شي شيـطـان د دوی د ګمـراه کـولـو کـوښښ کـوي زه يـې مشت نـمـونـه خـروار سـتـاسې پـه وړانـدې ږدم.

## لـمړی دلـيـل:

د عزيـز مـصر قـصه کـوي کـلـه چې يـوسف ➢ ﷲ د هغې سره تـنـهـا شوی وو ﷲ ➢ فـرمـايـي:
سورة يـوسف آيـة ۲۳

وَ رَاوَدَتۡهُ الَّتِیۡ هُوَ فِیۡ بَیۡتِهَا عَنۡ نَّفۡسِهٖ وَ غَلَّقَتِ الۡاَبۡوَابَ وَ قَالَتۡ هَیۡتَ لَکَ ؕ قَالَ مَعَاذَ اللّٰهِ اِنَّهٗ رَبِّیۡۤ اَحۡسَنَ مَثۡوَایَ ؕ اِنَّهٗ لَا یُفۡلِحُ الظّٰلِمُوۡنَ (۲۳)

ترجمه : او طلب وکړو له ده څخه هغه ښځې چې یوسف دهغې په کور کې وو او کلکې یې پورې کړې دروازې او بیا دغه ښځې یوسف ته وویل هله زر راشه! زه تا لره یمه یوسف وویل پناه نیسم زه په الله ➢ پورې چې بیشکه عزیززما خاوند دی هغه ښه کړی دی زما هستوګنځی (نو زه ولې دده په اهل کې خیانت وکوم؟) بېشکه چې ظالمان نیکي ته نشي رسېدلی (او زنا کول د خپل ځان سره ظلم کول دي)

څومره صفا ښکاره کیږي چې کله یو پردی سړی د یوې پردۍ ښځې سره تنها شو هغې څرنګه دده څخه د غوښتنې جرئت وکولو لکن څرنګه چې یوسف ⌨ د الله ➢ د پاکو بندګانو څخه وو الله ➢ ددې بد کار څخه وساتلو او بیا چې یوسف ⌨ د الله ➢ څخه وغوښتل چې دده پاکي او عصمت په نصیب کړي او دده په بندیخانه کې ژوند خوښ دی لکن پاک ژوند نو الله ➢ یې هغه دعا هم قبوله کړه الله ➢ فرمایي :

سورة یوسف آیة ۳٤

فَاسۡتَجَابَ لَهٗ رَبُّهٗ فَصَرَفَ عَنۡهُ كَيۡدَهُنَّ ؕ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيۡعُ الۡعَلِيۡمُ (۳۴)

ترجمه : نو قبوله كړه دده رب دده دعا او د دوی فريب يې له ده څخه واړولو بېشکه الله ➢ ښه آورېدونکی (د ټولو اقوالو) ښه عالم دی (په ټولو افعالو د انسانانو او حوادثو چې په دنيا کې واقع کېږي)

نو پدې صورت کې چې حضرت يوسف ⌨ يو پردی سړی وو د يوې پردۍ ښځې سره يوځای شوی وو هغې ترې مطالبه وکوله که چېرته يوسف ⌨ دومره پاک انسان نه وای نو لوستونکی يې پخپله تصور کولی شي چې څه به واقع کېدل؟ نو همداسې مثال بايد هغه مالدار سړي ته ياد وي چې ځوان نارينه خادم يې په کور کې کار کوي، هغه پلار ته د هم د امثال ياد وي چې پېغله لور او يا ځوانه ښځه د خپل ځوان موټر وان (ډرېور) سره بازار ته په سودا پسې او يا مکتب ته او يا دفتر ته لېږي .... هرځوان يوسف ⌨ نشي کېدلی او هر ښځه زليخا کېدلی شي نو چې کله ښځه زليخا شي او ځوان ورته يوسف نشي نو څه به واقع کيږي؟

دوهم دليل

ﷲ ➢ نارینه وو ته امر کوي چې خپل نظرونه ښکته کړي او ښځو ته امر کوي چې هغوی د هم خپل نظرونه ښکته کړي نو چې ﷲ ➢ په کوم شي امر کوي هغه خامخا ضروري کار وي بیا ﷲ ➢ ددې نظر ښکته ساتلو فایده پخپله بیانوي او فرمایي (ذلک ازکی لهم) یعني دا د دوی لپاره د پاکي خبره ده نو ددې آیت له نګاه نه پردۍ ښځې او یا پردي سړي ته کتل بالکل نه دي روا او هغه چې روا دي صرف اول ځل چې سترګې وربانده ولګیږي نو چې کله یې ووینې خپل نظر به بل لوري ته تږینه ا ړوي رسول ﷲ ﷺ حضرت علي ❼ ته فرمایي : یا علي ، لا تتبع النظرة النظرة فإنما لك الأولى وليست لك الآخرة . صحيح مسلم (ای علي کله د چې اول نظر په پردۍ ښځه پرېوتلو نو بل نظر مه ورپسې کوه ځکه اول نظر تاته معاف دی دوهم معاف نه دی)

د حضرت ابي هریره ❼ نه روایت دی هغه فرمایي رسول ﷲ ﷺ فرمایل : العينان زناهما النظر ، والأذنان زناهما الاستماع ، واللسان زناه الكلام ، واليد زناها

البطش ، والرجل زناها الخطأ " متفق عليه

ترجمه : د سترګو زنا کتل دي، د غوږونو زنا د پردی ښځې اواز آورېدل دي ، د ژبې زنا په فحش باندې د اجنبيې ښځې سره خبرې کول دي ، د لاس زنا د پردی ښځې را نيول او يا دهغې سره لاس لګول دي او د پښې زنا د ګناه په لوري تلل دي.

نو رسول الله ﷺ د سترګو نظر ته زنا ويلې ده ځکه دا د پردی ښځې د بدن په ښائسته اندامونو باندې خوند اخستل دي او پدې سره د هغې ياد او ذکر د کتونکي زړه ته ور ننوزي او دا کله د ګناه واقع کېدلو ته مفضي کيږي نو په شريعت کې چې کوم کار د ګناه سبب کيږي نو د هغه ګناه له امله دا کار هم ناروا کيږي نو چې د پرديو نارينه او ښځو سره اختلاط يو بل ته د نظر او نظر د ګناه سبب کيږي نو شريعت دا هرشی حرام کړي دي .

دريم دليل

➢ الله ښځو ته په قران کريم کې داسې نصيحت کوي چې دا به تر آخري حده پورې ځان د سړيو څخه په پرده کې ساتي حتى چې د داسې کارونو څخه يې هم منع کړيده چې هغه روا وي لکن د

ګناه سبب کېدلی شي او ورته فرمايي : **وَلَا يَضْرِبْنَ بِأَرْجُلِهِنَّ لِيُعْلَمَ مَا يُخْفِينَ مِنْ زِينَتِهِنَّ** (سره ددې چې په زمکه باندې په زوره پښه وهل ناروا نه دي لکن دلته ښځو ته چې په پښو کې يې داسې شيان وي چې هغه اواز کوي امر شوی دی ) دوی دې پښې په زمکه باندې په زوره نه وي ترډي چې ښکاره شي په پورته کېدلو د اواز سره هغه چې پټ وي د دوی د زينت څخه.

## څلورم دليل

الله ➢ فرمايي چې کله انسان په خيانت سره چاته ګوري په هغه هم الله ➢ پوهيږي او چې د هغه/هغې لپاره که په زړه کې څه را ګرځوي په هغه باندې هم الله ➢ پوهيږي الله ➢ فرمايي :

سورة غافر (مؤمن) آية ١٩

**يَعْلَمُ خَائِنَةَ الأَعْيُنِ وَمَا تُخْفِي الصُّدُورُ**

ترجمه : معلوم دی (الله ➢ ته) خيانت د سترګو او هغه څه چې پټوي يې سينې (زړونه)

حضرت عبد الله ابن عباس ❼ ددې آيت په تفسير کې فرمايي چې دا آيت د هغه کس په اړه دی چې د چا کور ته ورشي او چې کله د کور خلک دده سترګو ته نه ګوري نو دی په غلا غلا د هغه کور ناموس

ته ګوري او چې کله خلک ده ته ګوري دی بیا سترګې ښکته کړي او الله ➢ په هغه څه هم خبر دی چې دی یې په زړه کې پټ ساتي چې په زړه کې وایي که ده ددې ښځې نور ځان لیدلی وای او یا یې څه ورسره کړي وای .

الله ➢ په پورتني آیت کې په غلا سره کتلو ته د سترګو خیانت وویل یعني چې څوک د نا محرم سره کیني نو داسې کیږي چې سترګې په غلا غلا او خیانت سره نا محرم ته ګوري نو چې په واده او یا بل پروګرام کې دواړه پردي سره ازاد پاتې شي نو خامخا به یو بل ته په خلاصو سترګو ګوري او دا هرڅه ناروا دي.

## پنځم دلیل

الله ➢ ښځو ته امر کړی دی چې په کور باندې کیني او ترڅو چې ضرورت نه وي نو باید له کور څخه بهر لاړې نه شي نو چې صرف د ضرورت مطابق ښځې ته له کور نه وتل روا دي نو ددې مطلب دادی چې کله د ضرورت وخت پوره شي ښځه باید راسا بېرته کور ته ځان ورسوي الله ➢ فرمايي :

سورة الاحزاب آیة ۳۳

وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَى

ترجمه : او قرار ونیسي (ای ښځو) په کورونو خپلو کې او مه ښکاره کوئ ښائست خپل (پردو سړیو ته) په شان د اظهار (او ښائست) د جاهلیت د ښځو ړومبنیو .

لکه مخکې چې تېر شول په آیت کې حکم د رسول اللّٰه ﷺ بیبیانو ته شوی دی لکن هغوی د ټولو مسلمانانو مورانې دي نو ځکه دا حکم ټولو مسلمانو ښځو ته دی چې هغوی د بهر ته نه وزي او که د بهر تللو ضرورت کیږي نو هغه وتل به صرف د ضرورت تر اندازې پورې وي د مېلو او له پردیو سړیو سره به په پروګرامونو کې د شرکت لپاره نه وي.

## شپږم دلیل

❼ رسول اللّٰه ﷺ ته د حضرت ابي حمید الساعدي مېرمن حضرت ام حمید رضی اللّٰه عنها راغله ورته ویل یې : زما زړه غواړي زه ستا سره مونځ وکوم رسول اللّٰه ﷺ ورته وویل : قد علمت أنك تحبين الصلاة معي ، وصلاتك في بيتك خير من صلاتك في حجرتك ، وصلاتك في حجرتك خير من صلاتك في دارك ، وصلاتك في دارك خير من صلاتك في مسجد قومك ، وصلاتك في مسجد قومك خير من صلاتك في مسجدي

ترجمه : ماته معلومه ده چې ستا خوشیبري چې لما سره مونځ وکوې لکن ستا په خپله خاصه کوټه کې مونځ کول تر هغه کوټې نه مونځ غوره دی چې هلته ستا د کور نور غړي هم ورځي او بیا ستا په حجره کې مونځ کول د نور کور د کومې برخې نه غوره دی او بیا ستا په کور کې مونځ کول ستاسې تر خپل جومات څخه غوره دی او بیا ستاسې په خپل جومات کې مونځ کول زما تر جومات څخه غوره دی (رواه الامام احمد) (ځکه پدې هره مرتبه کې تر بلې نه د کمو خلکو سره د یوې ښځې مخ کېدل او اختلاط کمیبري او اسلام هر وخت ښځې ته په همدې نکته باندې ټنیګار کوي) .

بیا دې امر وکولوچې ماته زما په کور کې یو وړوکی جومات جوړ کړئ بیا یې ورته جوړ کړو او تر خپله مرګه پورې به یې هلته پکې مونځ کولو .

همدارنګه د حضرت عبد الله بن مسعود ❼ نه روایت دی چې رسول الله ☸ فرمایل : الله ➢ ته د ښځې په مونځونو کې تر ټولو نه هغه ډېر خوښ دی چې په خپل کور کې یې په داسې ځای کې وکوي چې هلته تیاره وي (یعني د کور ډېر د ننه وي)

دا دواړه حدیثونه دا خبره ښکاره کوي چې څومره کېدلی شي ښځه اګر که د عبادت په وخت کې هم وي باید تر ممکنه حده پورې د سړیو سره له اختلاط څخه ځان وساتي.

اوم دلـيل

د حضرت ابـي هريـره ❼ نـه روايـت دی رسول الله ﷺ د جمع د مـانـځه د هغه صورت په اړه فـرمـايـل چې هلـته نـاريـنه او ښځيـنه دواړه په جمع کې شريـکان وي چېرتـه چې اول د سړيـو صفـونـه دريـږي چې کـلـه هغه ختم شي بـيـا د ښځو صفـونـه شريـع کـيـږي :

خيـر صفـوف الـرجـال أولـهـا ، وشرهـا آخرهـا ، وخيـر صفـوف الـنسـاء آخرهـا ، وشرهـا أولـهـا

تـرجمه : د سړيـو پـه صفـونـو کې غوره اول صف وي (ځکه دا د ښځو لـه صفـونـو څخه ډېـر لـرې وي او امـام تـه نـږدې وي) او بـد صف يـې آخر صف وي (ځکه دا د امـام څخه لـرې او د ښځو صف تـه نـږدې وي چې د هغـوی تـوخی ، د ښکتـه کېدو او پـورتـه کېدو او نـور اوازونـه آوري زړونـه بـه يـې پـه هغـوی پـورې تـړلـې وي) اود ښځو پـه صفـو کې غوره صف د آخر صف دی (ځکه دا د سړيـو لـه صفـونـو څخه ډېـر لـرې وي) او بـد صف يـې اول صف دی (ځکه دا د سړيـو آخري صفت تـه نـږدې وي)

پـه مـانـځه کې سره ددې چې د يـو بـل مخونـه سره مخـامـخ نـه دي، خبـرې نـه کـوي، سـترګې سره نـه لـګيـږي بـيـا هم شريـعت خوښوي چې لـه يـو بـل نـه سره لـرې وي او پـه هغ ځـای کې چې دواړه سره خبـرې

کوي ، د يوبل سترګو ته سره ګوري د يو بل مخ وينـي نو هلته خو په طريق اولى سره شريعت غواړي چې دوی د سره لرې وي او د دوی په مينځ کې د اختلاط نه وي.

## آتم دليل

د حضرت عبد الله بن مسعود ❼ مېرمن حضرت زينب رضى الله عنها فرمايي رسول الله ☸ مونږ ته فرمايل : إذا شهدت إحداكن المسجد فلا تمس طيباً

ترجمه : کله چې په تاسې (ښځو) کې کومه جومات ته راځي نو عطر د نه لګوي (صحيح مسلم)

د حضرت ابي هريره ❼ نه روايت دی هغه فرمايي رسول الله ☸ فرمايل :

لا تمنعوا إماء الله مساجد الله ولكن ليخرجن وهن تفلات

ترجمه : د الله ➢ وينزې (مسلماناني ښځې) له جوماتونوڅخه مه منع کوئ لکن پداسې حالت کې به وزي چې دوی ساده وي نه يې ځانونه جوړ کړي وي او نه يې عطر لګولي وي.

پدې حديث کې جومات ته تلونکې ښځې د عطرو لګولو او ځان ښائسته کولو څخه ددې امله منع شوې چې کله په سړي باندې د ښځې د بدن د عطرو

بوی ولګیږي د انسان په زړه کې د بدو خیالاتو او د هغه د ذهن د ګډ وډ کېدو لامل (سبب) ګرځي همدارنګه هر ډول زینت ددې حدیث له مخې هغه ښځو ته منع شوي دي چې جوماتونو ته تلونکې وي .

## نهم دلیل

حضرت اسامه بن زید ❼ فرمایي رسول الله ☸فرمایل :

ما ترکت بعدي فتنة هي أضر على الرجال من النساء

ترجمه : ښځې چې د سړیو لپاره ځومره ضرر ناکه فتنه ده تردې زیاته ضررناکه فتنه نشته .

پدې حدیث کې رسول الله ☸ ورته فتنه ویلې ده او هغه هم د سړیو په مقابل کې نو شریعت بیا څنګه ښځو او سړیو ته په یو ځای کې د اختلاط اجازه ورکولی شي .

## لسم دلیل

د حضرت ابي سعید الخدري ❼ نه روایت دی هغه فرمایي رسول الله ☸ فرمایل: إن الدنیا حلوة خضرة ، وإن الله مستخلفکم فیها فناظرة کیف تعملون ، فاتقوا الدنیا واتقوا

النساء ، فإن أول فتنة بني إسرائيل في النساء

ترجمه : بېشکه دنیا خوږه ده او تازه ده او الله

➢ پکې تاسې خلیفه ګان کړي یاست ګوري چې تاسې څنګه عملونه کوئ له دنیا څخه وډار شئ او له ښځو څخه وډار شئ ځکه په بني اسرائیلو کې اوله فتنه په ښځو کې وه .

په دې حدیث کې رسول الله ﷺ مسلمانانو ته وایي چې له ښځو څخه وډار شئ (د هغوی د شر څخه ځان وژغورئ) دا حکم رسول الله ﷺ مسلمانانو ته کړی دی او دا حکم هلته په ځای کیږي چې سړي تر ممکن حده پورې د ښځو څخه لرې پاتې شي نو معنی دا چې ترڅو سخت ضرورت نه وي نو د ښځو سره اختلاط ونه کوي او کله چې د کوم ضرورت له امله اختلاط راځي نو د ضرورت تر حده پورې باید محدود وي .

یولسم دلیل

په بخاري شریف کې د حضرت حمزه بن السید الانصاري ❼ څخه روایت دی هغه فرمایي پداسې حالت کې چې دی له جوماتنه بهر وو سړي په لاره کې د ښځو سره یو څه خلط شول ده له رسول الله

ﷺ ښځه واورېدل چې هغه صلى الله عليه وسلم ښځو ته فرمايل :

استأخرن فإنه ليس لكن أن تحققن الطريق ، عليكن بحافات الطريق

ترجمه : (اى ښځو) وروسته شئ (پداسې حالت کې چې په لاره سړي وي) تاسې بايد د لارې په مينځ کې لاړې نه شئ د لارې په طرفونو کې لاړې شئ .
دى رضى الله عنه فرمايي بيا ښځې له دېوال سره داسې سريښ روانې وې چې جامې يې په دېوال پورې سريښ کېدلې.

پدې حديث کې رسول الله ﷺ ښځې ددې څخه منع کړې چې په لا ره کې د سړيو سره اختلاط وکوي او ورسره شريکې شي نو بيا شريعت په يو مجلس او محفل کې د اختلاط اجازه څنګه ورکولى شي .

دولسم دليل

د حضرت عبد الله بن عمر 7 نه روايت دى هغه فرمايي کله چې رسول الله ﷺ جومات جوړ کړو نو يوه دروازه يې خاصه د ښځو لپاره جوړه کړه او بيا يې وويل : لا يلج من هذا الباب من الرجال أحد (ددې دروازې نه به يو سړى هم جومات ته نه داخليږي) په بخاري شريف کې دده رضى الله عنه څخه په بل روايت کې دي چې رسول الله

ﷺفرمایل : لا تدخلوا المسجد من باب النساء (جومات ته د ښځو له دروازې څخه مه ننوزئ)

پدې حدیث کې رسول الله ﷺ جومات ته د ښځو او سړیو لاره ور بېله کړه ترڅو د سړیو او ښځو بالکل د اختلاط ځای پیدا نشي حتې چې د جومات په دروازه کې هم له یو بل سره مخامخ نشي سره ددې چې هغه داسې وخت وو چې د جومات او مانځه ټول کارونه پخپله د رسول الله ﷺ تر لارښونه لاندې مخ په وړاندې تلل لکن بیا هم رسول الله ﷺ ښځې او سړي دومره د اختلاط نه سره لرې ساتل نو اوس شریعت څنګه د داسې پروګرامونو، جلسو ، مظاهرو ، دفترونو ، ودونو ، شفاخانو ، بازارونو، هوټلونو ، موټرو ، بسونو اجازه ورکولی شي چې نارینه او ښځې سره پکې خلط او شریک ګرځي، کیني او پاڅیږي؟ ...

## د ښځې لپاره له کورنه بهر کار کول

پوښتنه: په اوس وخت کې چې په اسلامي ملکونو کې هم ښځې په دفترونو کې کار کوي د شریعت له نظره ددې څه حکم دی؟ آیا ښځه کولی شي په دفتر کې کار وکوي؟

ځواب : الله ➢ مختلف قسم مخلوقات پیدا کړي دي او هر مخلوق ته یې د هغه د جوړښت مطابق

وظیفه ور کړې ده او هغه ته یې هدایت کړی دی چې هغه خپله وظیفه تر سره کړي پدې مخلوقاتو کې که هر مخلوق خپله وظیفه تر سره نه کړي نو په نظام کې بدلون راځي مثال یې د هغه لوی ماشین دی چې مختلف ډوله پرزې پکې لګېدلې وي چې مختلف کارونه کوي که هره پرزه خپل کار پرېږدي د ماشین په کار کې فرق راځي او د همدې مخلوقاتو له جملې څخه دوه ډلې د نارینه او ښځینه انسانانو دي او الله ➢ دوی دواړو ته هم خپلې وظیفې ور تقسیم کړي دي چې د دواړو په شریکه تر ټولو لوړه او مهمه وظیفه صرف د الله ➢ عبادت کول دي الله ➢ فرمایي :

سورة الذاریات آیة ٥٦

وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالإِنسَ إِلاَّ لِيَعْبُدُونِ

یعني : ما پېریان او انسانان صرف د عبادت لپاره پیدا کړي دي .

ددې لویې وظیفې څخه وروسته په طبعي ډول د نارینه او ښځینه انسانانو وظیفې بېلې بېلې دي د هغه طبعي تقسیم تقاضاء داده چې د نارینه په ذمه هغه کارونه دي چې له کور نه بهر وي (ځکه دا کارونه اکثر سخت وي او اکثر پکې داسې ځایونو ته د تللو ضرورت وي چې د خطر سره پکې مخ کېدل وي نو ښځه د خپل جوړښت له امله ددې کارونو څخه عاجزه ده) او د ښځې وظیفه به هغه

کارونه وي چې په کور کې د ننه وي (ځکه ښځه ترڅو چې په کور کې د ننه وي هغه به محفوظه په امن او سلامتیا کې وي) نو که بیا هم یوه ښځه غواړي چې د کور نه بهر کار وکوي اسلام یې د کار ممانعت نه کوي لکن چې پدې کار کې یې د شریعت خلاف څه ونشي ، پرده ما ته نشي ، د پردیو سړیو سره اختلاط ونشي ... او داسې نور او ښځه چې له کور نه بهر کوم کار کوي دا کارونه په درې ډوله دي.

۱. داسې کار چې هغه نارینه نشي کولی

دا هغه کارونه وي چې ښځې ته پکې سخت ضرورت وي او د ښځې نه بغیر دا کارونه په سمه توګه په مخ نشي تللی لکه د ولادت په وخت کې د ښځو نګراني کول، د زنانه د بیماریو علاج کول، ښځو ته پداسې ځای کې چې هلته سړي نه وي دیني تعلیم ورکول دا هغه وظیفې دي چې باید ښځې پکې کار وکوي اود ښځې نه بغیر دا وظیفې په سمه توګه نشي پوره کېدلی نو که کومه ښځه پدې برخه کې کار وکوي نو ښه خبره ده لکن چې پدې وظیفه کې کار کول د شریعت سره د ټکر سبب ونه ګرځي (شرطونه یې را روان دي)

۲. هغه وظیفې چې سړي یې کولی شي لکن بیا هم ښځه یې کوي.

دا وظیفې لکه زراعت (کرهنه) تجارت ، د کارخانو چلول دا ټول کارونه نارینه بغیر د

ښځو ځخه هم کولی شي لکن کله کله پکې ښځه مقرر کول کیږي پدې ډول کار کې هم ښځه وظیفه کولی شي لکن چې د راتلونکو شرطونو سره یې ټکر نه وي .

۳. ښځه صرف د ترقي لپاره ساتل کیږي .

دریم ډول هغه کارونه دي چې سړي یې هم بغیر د ښځې د ملګرتیا نه کولی شي لکن ښځه پکې ددې لپاره مقرره کول کیږي (په خاصه توګه په استقبالیه کې) چې د خلکو نظر جلب کړي پدې وظیفه باندې مقرره ښځه پدې ماموره وي چې باید په ښه لباس کې راشي په ښه رویه خبرې وکوي او په اکثرو ادارو کې وربانديې د پردې کولو نه هم بندیز وي نو داسې وظیفه د مسلمانې ښځې لپاره په هیڅ صورت نه ده روا او باید مسلمانه ښځه خپل عزت و پیژني او د چا د لوبو سامان او یا د ډیکورشن اسباب ځان جوړ نه کړي .

په پورتنیو دوو قسمو وظیفو کې که ښځه کار کوي باید د لاندې شرطونو مطابق وي .

## ۱. دا کار به داسې کار وي چې ښځه یې کولی شي .

د ښځې د جوړښت او دهغې د نازک طبیعت سره برابر کار وي یعني د ښځې وظیفه د سختو بارونو پورته کول ، څوکیداري کول او داسې نور نه وي

بلکه د ښځې لپاره هم ښې وظيفې شته د مثال په ډول استاذي کول ، د ښځو د بيماريو علاج کول او داسې نور ..

## ۲. د پرديو سړيو څخه لرې والی .

مسلمانه ښځه چې په کوم ځای کې کار کوي هلته ښځه بايد له پرديو سړيو څخه لرې وي او ددې وار نه راځي چې يو پردی سړی او يوه پردۍ ښځه په يو ځای کې يوازې سره پاتې شي رسول الله ﷺفرمايي : کله چې يو پردی سړی د يوې پردۍ ښځې سره په يو ځای کېنې شيطان د دوی دريم وي. نو که مسلمانه ښځه په داسې ځای کې وظيفه کوي چې هلته ددې سره يو اجنبي سړی يوازې کېني نو شريعت په هېڅ صورت ددې اجازه نه ورکوي.

## ۳. په وظيفه کې به پرده ساتل کيږي .

مسلمانه ښځه چې په کوم ځای کې کار کوي هلته بايد د ښځې پرده ماته نشي او هر وخت په پرده کې وي او هلته چې کوم پردي خلک وي هغوی بايد پدې ونه توانيږي چې ددې مخ ووينې او که په کومه وظيفه کې د ښځې لاسونه پښې او مخ پرديو سړيو ته ښکاره کيږي د اسلام له نظره داسې وظيفه کول ښځې ته نا روا دي .

٤. د خاوند یا بل متصرف اجازه

ښځه چې کار ته ځي باید د خاوند د لوري نه ورته اجازه وي او هغه ښځه چې واده شوې نه وي نو چې څوک ددې په سر متصرف وي مور پلار ، ورور او یا بل څوک چې ددې ښځې واک یې په لاس کې وي که هغه دې ته د کار اجازه نه ورکوله دا په خپل سر تله نو دا کار یې ناروا دی .

۵. ښځه به کار ته په ساده ډول ځي.

مسلمانه ښځه چې چېرته کار کوي هلته به په ساده جامو کې ځي او ددې لپاره به ځان نه ښايسته کوي او په ځان به عطر نه لګوي چې د خلکو توجه ځان ته جلب کړي په قرآن کريم کې الله ➢ ښځې ددې څخه منع کړې دي چې خپل ښائست خلکو ته ښکاره کړي رسول الله ☸ دهغه ښځې په اړه چې د عطرو بوی يې په اجنبي باندې ولګيږي فرمايلي دي چې هغه داسې (زانيه) ده .

٦. د کورنۍ وظيفې سره ټکر نه وي.

مسلمانه ښځه په کور کې هم خپله وظيفه لري چې د خاوند رعايت کول او د اولادونو پالنه کول دي نو کومه ښځه چې د کار لپاره بهر ته ځي ددې د بهر کار بايد ددې د کورنۍ وظيفې سره ټکر نه وي او که چېرته ددې د بهر کار له امله ددې د کور وظيفه متاثره کېده نو پدې اول د خپلو اولادونو پوره رعايت کول دي نو ددې لپاره غوره ده چې د کور د کارونو لپاره بهرنۍ وظيفه پرېږدي.

۷. ضرورت به يې وي

ﷲ ➢ ښځو ته امر کړی دی چې په کور کېنې ﷲ

➢ فرمايي :

سورة الاحزاب آية ٣٣

وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَى

ترجمه : او قرار ونيسي (ای ښځو) په کورونو خپلو کې او مه ښکاره کوئ ښائست خپل (پردو سړيو ته) په شان د اظهار (او ښائست) د جاهليت د ښځو ړومبنيو .

نو چې بهر ته وتل ورته روا دي هغه د ضرورت له مخې نو ښځه چې د کار لپاره د کور نه وزي دا به يې هم ضرورت وي او که کار ته يې ضرورت نه وي شوقي يوه وظيفه کوي نو شريعت يې اجازه نه ورکوي.

## ٨. په وظيفه کې به يې حرام نه وي.

مسلمان که نارينه وي او که ښځينه هغوی ته به خپل اسلام او خپل مقدس دين تر بل هرشي څخه گران وي نو چې په کومه وظيفه کې حرام عمل وي د مثال په توگه څوک د سود په دفتر کې مقرر شي او يا د سړي لپاره هلته د پردۍ ښځې او د ښځې لپاره هلته د پردي سړي سره بغير د پردې نه کار کول وي بايد مسلمان يې د خپل ا سلام د پاره رد کړي ځکه ﷲ ➢ انسانان او پېريان صرف د خپل عبادت لپاره پيدا کړي دي لکن دوی

ته يې د كار ، خوراک او څښاک اجازه ددې لپاره وركړېده چې دا شيان د انساني ژوند ضرورت دي او دا شيان چې د اسلام له تقاضو سره ټكر شي نو بيا يې پرېښودل په مسلمان باندې واجب دي .

څرنګه چې اسلام د انسانيت د حفاظت لپاره راغلی دين دی انسان ته يې هر حكم په سرو زرو د ليكلو وړتيا لري چې څومره اسلامي قوانين دي ټول د انسان په ګټه دي او هر حكم يې د حكمتونو څخه ډک دی ځكه اسلام د ضرورت نه بغير د ښځې له كور نه راوتل منع كړي دي او څومره په عجيبه انداز كې الله ښځو ته امر كړی دی .

سورة الاحزاب آية ٣٣

وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَى

ترجمه : او قرار ونيسي (ای ښځو) په كورونو خپلو كې او مه ښكاره كوئ ښائست خپل (پردو سړيو ته) په شان د اظهار (او ښائست) د جاهليت د ښځو ړومبنيو .

- په آيت كې الله كورونو ته د ښځو كورونه ويلي دي سره ددې چې كور خو د سړي وي لكن دوی ته يې ويلي دي چې ددې امله چې تاسې پكې هر وخت هوسېږئ او كله هم بهر ته تربېنه نه وزئ نو دا ستاسې كورونه دي او په همدې كې و اوسېږئ او د همدې لپاره چې ښځه په خپل كور كې كينوي الله
- په ښځه باندې هغه كارونه نه

دي فرض کړي چې د کوم لپاره له کور نه د وتلو ضرورت وي لکه د اختر مونځ په ښځه باندې واجب نه دی د جمعې مونځ وربانديې فرض نه دی د جومات د جمع له مونځ نه ددې مونځ ددې په کور کې غوره دی په اسلام کې مهمه فريضه جهاد چې کله فرض عين هم وي او هېڅ مسلمان ته اجازه نه وي چې دهغه څخه مخ واړوي لکن الله ➢ په ښځو باندې نه دی فرض کړی ځکه چې هغه هم له کور نه بهر وتل غواړي .

دهمدې امله چې اسلام غواړي ښځې ته په کور کې عزت ورکړي ټول عمر يې د ښځې نفقه په بل چا لازمه کړېده مخکې له واده په مور پلار او يا په بل متصرف والي باندې او له واده وروسته په خاوند باندې ددې لپاره چې ددې ضرورت نشي چې له کور نه بهر را وزي .



- المبسوط للسرخسي
- شرح الوقاية
- حاشية ابن عابدين (رد المحتار على الدر المختار)
- غمز عيون البصائر في شرح الأشباه والنظائر
- العناية شرح الهداية
- فتاواى قاضيخان
- التتارخانية
- محيط السرخسي
- الهداية
- الكتاب
- اللباب في شرح الكتاب
- حاشية طحطاوي على المراقي
- فقه العبادات (حنفي)

